# ژوند یو سراب

دا څۀ ژوندون دے ، مختصره افسانه غوندے ده
مرګے د یار په لور، دَ تګ څه بهانه غوندے ده

ایم طارق سحرؔ
ایم طارق سحرؔ

# ټول حقوق محفوظ دي


دَ کتاب نوم -------------------- ژوند یو سراب

دَ مصنف نوم -------------------- ایم طارق سحرؔ

چاپ خانه -------------------- سهیل پریس مردان

د چاپ کال -------------------- دسمبر ۱۹۹۹ء

کتابت -------------------- یو ایس اے کمپیوټر
سنټر مردان

تعداد -------------------- پنځه سوه

قیمت -------------------- ۳۰ روپۍ

دَ موندلو درک-------------------- پښتو اکیډیمی پیښور
یونیورسټی
یونیورسټی بک ایجنسی
خیبر بازار پیښور
لوند خوړ بازار

# فوټو



## ایم طارق سحرؔ



## تړون

دَ مینې ، خلوص ، صدق او

اخلاقیاتو په نوم

افسوس چه رو رو په

ختمیدو دی

ایم طارق سحرؔ

ژوند یو تور ګړنګ دے ، دے ګړنګ کښې وی تیاره مدام
ژوند دَ غم یو شپه ده ، ته خوبونه پکښې مه ګوره
هر ساعت د ژوند کښې ، څومره ډیر ډیر فریبونه وی
ژوند پیکه پیکه دے ته رنګونه پکښې مه ګوره



# سریزه

"ژوند یو سراب" د ښاغلی طارق سحرؔ د شعرونو د مجموعے نوم دے۔ په دے نوم کښې د شاعر د فکر یو څرک ښکاری که هر څو دادهر شاعر المیه ده خو ځنې شاعران د رجائیت او قنوطیت په برید د ژوند تیرولو توان لری۔ یا په مقام د میشته کیدو مجبور وی۔ ولے د شاعر غم دومره څرګند او ښکاره غم نه وی که هر څوئے دی د ښکاره کولو هڅه کوی هومره نور په بیخ کښې پټ پاتی کیږی۔ نو شاید شاعر له نورو خلقو ممتاز په دے ، دے چه د خپل درد د اظهار په هنر پوهیږی اور اظهار سره نیم درد خوکم شی۔

دَ شاعر دغه درد کښې یوائے د هغه د خپل ژوند خپل ارمان او د خپلو آرزوګانو د ناتمامئ او ناکامئ څرېکے نه وی دَ بنیادم دماحول دفکر دتجربے دتخیل اوذهن تردے چه دَ امکان المیه هم هغه ته د ژوند د ناثباتئ او په دے کښې د انسان مجبور مقام مخے ته کیږی۔ دا د داخلیت د شاعر یو خصوصیت بویه۔ دَ مقصدیت قائل شاعران د

خپل اظهار په درکم د ابهام نه کار اخلي ځکه چه هغوی د
ژوند او انسان په مسائلو "براه راست" تبصره کوی هغه د
خارج نه تاثر اخلي او د خپل داخل په خوږوئ د فن په جامه
کښې رانغاړي خو د داخلیت شاعر دَ دے په تقابل کښې د
بل دَ اذیت ښکار وی هغه خپل داخلي حال وئیل هم
غواړي او دا به هم وواېو چه وئیل ګران هم وي۔ ځکه چه دا
دَ ده دَ ذات د ارمان د خواهش او د تخیل نه دپردے لرے
کولو نوعیت لري اور شاید فن ځکه په وجود کښې راشي۔
که وائي هم مشکل اورکه نه وائي هم ګرانه خو دا حقیقت
دے چه داخلیت د موضوعاتو شاعر کښې یو فکري ژورتیا
د هغه په شعر کښې خوند سیوا کوی۔

ښاغلی طارق سحرؔ ماته د داخلیت عجیبه شاعر
ښکاره شو۔ شعر سره د هغه مینه ده، یو بالغ نظر انسان دے۔
کلکه عقیده هم لري ارمانونه او آرزوګانې خو به یقیناً لري او
د دغه ارمانونو د رژولو تکل به ئې کړے وی که نا ، دا وئیل
ګران دی، په دے چه شاعر په خپل ارمان ژوندے وی خو د
ارمان غم او لذت یو خپل اثر او سرور لري چه د شعر وئیلو



په مشغله ورسره ژوند تیریږی۔

د طارق سحرؔ په شاعرئ کښې د مجاز خوندونه هم شته
غزل کښې داخلي معامله داسې ستائي:

په انتظار مِ سترګې مړے شوے ته به کله راځے

تیرے قیصئ تولے زړے شوے ته به کله راځے

د ژوندن نمر زما پریوزی بازیګر غوندے شو

زما ښائسته سترګې ړندے شوے ته به کله راځے

د طارق سحرؔ آزاد نظم د ستائنې وړ دے، په دے جدید
صنف کښې جوت مقام لري، ژوند ، انسان ، اے زمونږ زوړ
کوره، زما خیالی دلربا، او محبوبا! زمانه لاړے ، شهکار
نظمونه دی چه مقصدیت داخلیت او فلسفه لري، د خارج
نه هم سترګې نه پټوی او د هغه په ځان دترس راتلو نه زیات
په حالاتو دردیدلے ښکاری که هر څو د ځوانې حوصلے
خاوند ښکاری ولے د قسمت واګے د هغه په لاس خو نه دی
نو شاید ځکه هغه ژوند چه د کومے زاویئے نه کتلے دے او یا
ورته ګوری څه ئې لیدلی دی څه ئې موندلی دی۔ خو په کوم
کښې د دغه لیدو او موندو عمل او اضطراب شل نورے
دروازے هغه ته لرے کړے ښکاری او د بالغ نظر انسان په

حیثیت که څه هم د قنوطیت په برید ولاړ ښکاری ولے ژوند ورته وړاندے د یو سراب نه زیات څه نه ښکاری خو ښه خبره داده چه دے په دغه سراب کښے هم د خپل تلاش او جستجو مزل جاری ساتی ګنی د ځانه خو به چاپیره چورلی چه ژوند هم کول دی او د پښتنے معاشرے تقاضه هم ۔

طارق سحرؔ د داخلیت یو بالغ نظر شاعر دے

ډاکټر راج ولی شاه خټک

ډائریکټر پښتو اکیډیمی

پېښور یونیورسټی

صوبه سرحد پاکستان

ځلورم اکتوبر، کال ۱۹۹۹ء



## ☆ د سحر تیارهٔ ☆

طارق سحر زما دوست او زما ملګرے دے ډیر اخلاصی بنیادم دے زهٔ ئے د ډیر وخته راسے پیژنم ۔ طارق سحرؔ د ادب سره ډیره جوخته رشته لری۔ شاعر دے ۔ ادیب دے په نوو زلمو شاعرانو کښے د سحر یو خصوصیت دا دے چه د ژوند پحقله یو خپل نظر لری دا نظر د فلسفیانه تفکر سره سره ډیر دردناک او سوزناک هم دے که مونږ هر څو دے نظر ته د قنوطیت اثر ووایو خو دا قنوطیت هم نه دے بلکه دا د ژوند اصل څیره ده۔ "لاړ زیړے مازیګرے شو" نظم د مطالعے نه د ده د دے فلسفیانه او رنګین نظر د ژوند حقیقت د یو پړقیدونکی سراب په شان ښکاری مازیګر هر چا ستائیلے دے خو د هر شاعر په سر د پیغلو جونو د ځوانئ او مستئ هاتی په سر سُور وی مګر دَ ده په نظم کښے د ژوند او مازیګر یو حقیقت د ډیر درد او کرب په تناظر ډیر عجیبه ښکاری دغه شان "د مور قبر ته"، نظم کښے سحر صاحب د ژوند د خوب پحقله د خپل لاشعور ډیر ښکلے ننداره وړاندے کړے ده داسے ښکاری چه طارق سحرؔ د "درد او

کرب" شاعر دے خو دا درد او کرب نه د شخصي مینے په
حلقه کښې ګیر دے او نه څه بلې محدودے نظریے او سوچ په
پنجره کښې پابند دي۔ د طارق سحر نظر د ژوند په حواله یو
کائناتي وسعت لري د ده د اکثرو نظمونو په تخلیق کښې
دغه یو درد دے بلکه د فنا او نشت یو ډیر ژور مابعد
الطبیعاتي زخمي احساس دے چه ده د "ژوند یو سراب" په
نوم موضوع کړے دے۔

د ژور تفکر سره سره د ده په شاعرۍ کښې د شعریت
سوز د اور سره د لوګي رشته لري۔ بنجارې، یوبوډا، محبوبا
زما نه لاړے، پاڼړے پاڼړے ئے ښکاره ثبوتونه دي په خپل
موضوع ګرفت او د بیان رواني او سادګۍ د ده د شاعرۍ نه
د یوے نغمے تأثر راولاړ وي

ډاکټر پرویز مهجور خویشکے

ریسرچ سپیشلسټ

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

څلورم اکتوبر کال ۱۹۹۹ء



## خپلے خبرے

ګرانو لوستونکو!

"ژوند یو سراب" زما د کلام دویمه مجموعه ده چه
ستاسو د وړاندے ده۔ ددے نه وړاندے زما د کلام اولنۍ
مجموعه "د دشت لارو ے" په نوم پښتو ادب ته پیرزو شوے
ده، زه خو ځان ته شاعر نه وائم۔ د پښتو ادب سره مینه او
خپل احساسو نه ما مجبور کړي او څه خبرے د کاغذ پاڼړو
باندے اولیکم دا یو منلے شوے حقیقت دے چه شعر طبعي
او قدرتي څیز وي چه د یو شاعر تخیل، احساس، او د
داخلیت نچوړ وي۔ عام خلق که شعر ته په هر نظر ګوري
ولے د ادبي خلقو خپله دنیا وي، په دے لویه دنیا، په دومره
خلقو او دومره لوئے کائنات باندے د هغوی نظرونه ښخ وي۔
شاعر خوږ شي ځکه چه نازک احساس لري دغه احساسونه
په ژوند دهیریدو نه وي دغه احساسونه په آخر کښې کتابي
شکل او مومي چه د عامو خلقو جذبات او احساسات هم
راپاروي او د عقلیت اور حکمت خبرے پکښې هم بیا
مومي۔

دا دنیا ، ژوند، شپه و ورځ ، تیر وختونه ، که په هر
انداز کښې وی یا تیرشی خو دا د انسان په ذهن او یادونو
کښې څه خبرې پاتې کړی کله کله انسان د راتلونکې زمانې
نه هم یرېږی دا ټولې خبرې د یو شاعر احساس ډیر زیات
خوږ وی او په دې وینا مجبور شی۔

نمر د ژوند مِ
لاړ ډوبیږی
د ژوند لو یه ورځ شوه تیره
دواړه لاسه مِ خالی دی
مِ
جولۍ د غمه ډکه
لاړ زیړې سازیګرې شو
زۀ روان
تیرو ته څمه

بس دې ډیر وئیل نه غواړم د خپلو ټولو ادبی ملګرو
مننه کوم چه ماته ې لوړې لوړې حوصلې راکړې او زۀ ئې دَ
کتاب په شائع کولو مجبور کړم۔ خصوصاً زۀ د پښتو



اکیډیمی پېښور یونیورسټۍ ډائریکټر صاحب محترم ډاکټر
راج ولی شاه خټک او ډاکټر پرویز مهجور ریسرچ
سپیشلسټ ډیره مننه کوم چه زما په دې کتاب ئې د خپلو
درنو خیالاتو اظهار اوکړو۔ او زما د پښتو ادب سره مینه او
حوصله نوره هم زیاته شوه۔

ګوتې قلم ته په ژړا شوې
خط به باقی وی مونږ به تورې خاورې شُونه

په مینه مینه
ایم طارق سحرؔ
څوارلسم اکتوبر کال ۱۹۹۹
دَ زیارت ورځ۔

## حاسد ته!

حاسده! حسد مه کړه بیا هله لوله کتاب
کتاب ګوره کتاب وی شے په حسد به کباب
چه حسد در کښې نه وی په معنٰی به ئے شے پوهه
زړګے ورته صفا کا بیا ئے لوله هر یو باب



## سبحان الکریم الحکیم

خومره ښکلے دے ستا حسن زما ښکلے محبوبا
ته د نوُر یوه رڼړا ئے ته یو ستورے د صبا
ستا د حسن ثانی نشته دے دنیا کښې دلربا
د خوبانو لوئے سردار ئے، د شاهانو شِهنشا
خومره تا باندے مئین دی اے د هر چا محبوبا
تا زما نه هم زړه وړے لږ خپل حسن ماله را
دومره لویه میکده کښې بے سروره بے خماره
چه زه نوش کړمه شراب پیاله راکړه ساقیا
اے آقا، اے هو شربا، اے خوبا، اے دلربا
ته ځیګر کښې ئے زما، ته زما ښکلے شها
تا عالم رڼړا رڼړا کړو هر سحر اور هر بیګا
ته سپوږمئ د خوارلسمے په عالم کښې ستا رڼړا

## خپله خدایه

رَبّه حسن ماله راکړه ربّه مینه ماله راکړه
لږ راتیته مِ کا خپل ځان ته په رکوع په سجدو
ستا په حسن نه مړیږم ، ستا په مینه نه مړیږم
لږ مِ ځان ته رانږدې کا چه شم موړ ستا په بوُسُو
زما برندې سترګې مړاوې زما برند وجود لږ سست کا
چه زه پریوزمه په زمکه، شم بې هوشه په سلګو
د خلوص او ادب ډکه، ستا نه هغه مینه غواړم
ما عادت کا خپله ربّه! په قعدو په سجدو
سم مِ خپل مکان ته بوځه ما مهمان کا د خپل حسن
ورې زړه مِ نه مړیږی ستا د حسن په لیدو
ګیر چاپیره کائناتو کښې ، هستی دِ لیدې کیږی
څومره ډیر حسن دِ ښکاری دَ کعبې په منارو



## خپل حضور ته!

ډیر لرې ئې محبوبه! څومره ډیرې فاصلې دی
دیدن ته م زړه کیږی څومره لرې فاصلې دی
دا هجر دې که وصل عجیبه غوندې مِ مینه
درتلې نه شم محبوبه! څه مجبورې فاصلې دی
په مینځ کښې لوئې بحرونه دی څه لوئې ریګستانونه
یوازې درتلې نشمه څه ګوورې فاصلې دی
ډیر زړه مِ خدائیګو کیږی، مدینې لارو کوڅو ته
په یثرب کښې هم ته لرې، څومره هُورې فاصلې دی
واخله واخله محمدؐ! تش سلام زما قبول کړه
زهٔ مئین یمه په تا، مینځ کښې سترې فاصلې دی
ستا هجر کښې رنځور یمه، دې غم نه به زه مړ شم
سحرؔ! ارمانی به شې رنځورې فاصلې دی

# یا رسول الله

تږے د دیدن یم اے جانان د مدینے
په زړه کښې مِ ستا مینه هم ارمان د مدینے
درځم به دے دیدن له، ته رښتیا ځما دلبرئے
کوڅو کښې به دے ګرځم یو زمان د مدینے
فرصت راکړه هجرانه چه په لور د جانان لاړ شم
په زړه مِ راوریږی هر یو آن د مدینے
ترڅو به داسے تږے یم حضور ستا د مدینے
له غمه به دے مړشم په ما ګران د مدینے
لیدل غواړی حضورهٔ سحر ستا د کوڅے خاورے
ډیر تږے د وصال دے، مهربانً د مدینے



## 000- بے وفا دنیا -000

زړګیه صبر شه د چا ګیلے کړے
دا خوبے حسه، لا پروا دنیا ده
غلے غلے شه پریشانه نه شے
دا خود غرضه، بے وفا دنیا ده
په خپله مینه بد ګمانه به شے
د ظالمانو، بے نوا دنیا ده
زړه ته پخپله قراری ورکوه
دا د رندو او نابینا دنیا ده
د جانان مینه زما لوے جهان دے
دا م د زړه ځان له تنها دنیا ده
سحر! پام کوه رُسوا چه نه شے
دا خو ذلیله بے وفا دنیا ده

## "سترګے"

که دا ستا سترګے ، خوږے نه وے ما به ولے کتل
که خندیدلے راته نه وے ما به ولے خندل

دوسره خوږے چه ئے دَ ټول عمر بیماره کړمه
که ستا دَ حُسن خوارۀ نه وو ما به ولے ژړل



## "غزل"

زما لیونی زړه ته د جانان خبرے مه کړه
زخمی زخمی ځیګر ته د ارمان خبرے مه کړه
زړګی مِ اور اغستے په مزه مزه بلیږی
لمبو باندے سوزیږی د نیران خبرے مه کړه
مینه خوشحالی وی یو وصال او انتظار وی
زما مینه شوه هجر، د هجران خبرے مه کړه
د هجر درد ئے خدائیګو به همیش زما په زړه وی
دا درد زما هم بس دے د درمان خبرے مه کړه
دا شته غمونه ډیر دی اے ناصحه مانه واوره
پریشان زړګی ته نورے د خفګان خبرے مه کړه
بے وسه ئے ، بے بسه ئے، زما د زړګی مینے
سحرؔ! ته دنیا ته د خپل ځان خبرے مه کړه

## د مور قبر ته!

دې دنیا کښې هیڅوک نشته چه نازک زړه م قلار کړي
مورې ما ته لږ راپاسه! څوک به دِک زړه م قلار کړي
مورې تاله یم راغلې ، ماله خپله مینه راکړه
دې دنیا کښې رحم نشته، څوک به کلک زړه مې قلار کړي

ستا بنائسته وجود نه مورې یو د خاورو څلې جوړ شو
ستا د بنکلې ارمانونو ، تش یو خړ شان ډهیرې جوړ شو
زما ډیره مینه مورې ستا په خاورو نه مړیږي
زه چه ګورم ستا مزار ته، ترِ ډهیرې د خاورې جوړ شو

مورې ما ته لږ راپاسه راته اووایه حالونه
ژوند دِ تول څان سره یوسهٔ که به راکړې دیدنونه
هیڅ وئیئ نشم له درده زړه مِ ډک دې رابهیږي
زه به تول عمر پریشان یم ، زه به کړمه ستا غمونه



دې دنیا کښې به ډیر خلق مورې وي او ته به نه ئې
ورځې شپې به داسې وي، او ته به نه ئې
ستا په نشت به خپلې مورې! ماته څان نیمګړې ښکاري
ستا یادونه به تش وي، او ته به نه ئې

ته چه لاړې زما مورې تا زهٔ چاته پریښودمه
ته چه وې به په خپل کور کښې زهٔ به هسئ خندیدمه
دیوانه به شم له هجره ته چه نه ئې دې دنیا کښې
د معصوم غوندې به ژاړم مورې تا به یادوومه

ستا د مینې د ژوندن هره لمحه زما یادیږي
ستا د بنکلي وجود شان ، هره لحظه زما یادیږي
چه ته به وې چه کوم ځائې ناسته، ورته ورشم په ژړاشم
هغه ځائې خالي اوس پروت وی، زمانه زما یادیږي

کور به خوشې وی اې مورې ستا په غم به زه سوُرې یم
زه به ګورمه ستا مینه ، خو به هر چاته پردې یم

ماخدمت د تا اونه کړو، مورے زر رانه جدا شوے
کور ته راشم چه ته نه ئے سرګردانه بې اسرے یم

له ډیرے مینے ډیره درده لیونے به شمه
زړګیه صبر شه سوزیږم سپیلنے به شمه
دا خو دستور دے ژوندن خاورو له ځی
ستا په هجران کښے خپلے مورے دُردانے به شمه

اے مورے! ما رضا کا مرور تاله راغلے
ولاړ دِ پښنو ته ژاړی نن سحرؔ تاله راغلے
دے دنیا کښے هیڅوک نشته چه دا اوښکے مِ کړی اوچے
راپاسه مورے پاسه ! خپل ځیګر تاله راغلے



# "انسان ته" آزاد نظم

دومره مستی ولے کړے
دومره غرور ولے کړے
دا دومره ناز ولے کړے
ستا خو وجود هم نه وو
وے د عدم دنیا کښے
ځان ته لږ پام اوکړه
دا سترګے کوزے کا ته
او!
سم کتل پهِ اوکړه
چه ستا هستی له کومے
او ستا!
تخلیق له کومے
په کومه لار راغلے
او ستا راتګ ځنګه وو
څومره بے وسه وے ته
څومره بے حسه وے ته

دا هر څه وينه خپله
سترګې دِ مه پټوه
نه په اول کښې څه وې
او ستا آخر به څه وي
اوس دومره سر اوچتئ
يو لوئې باغي ئې له ځان
او لوئې باغي له جهان
دا هر څه هير
دي درنه
انسانه! کله کله
د ځان خبر اخله
ځان ته لږ پام کوه
بانړه دِ مړاوې مړاوې
وجود دِ غلې غلې
لږ به ايسار ئې دلته
کېږې به بيا بار وې
ځې به په اوږد سفر



د زمکې خيمه کښې به
بيا!
په يو اوږد مزل
پټ پټ
په رو روان ئې
نه به دِ غږ خيږي
نه به دِ شرنګ خيږي
انسانه!
سر ښکته که
لږه ژړا اوکړه
پخپل ژوندن
پخپل وجود خپله هستئ باندې
هيڅ
حقيقت نه لرې
ستا يو خيالي دنيا ده
دا دومره ناز ولې کړې
په دې رنړا ورځې به

ورک شے کوڑے
خومره قومونه
بنائسته خلق ستا نه
مخکښے ورک دی
بیا دومره ناز ولے کړے
دومره غرور ولے کړے
ښکته که سر ښکته کړه
چرے اوچت ئے نکړے



## "غزل"

اے عشقه ته که نه وے زۂ به نه وے دردیدلے
اے حُسنه ته که نه وے زه به نه وے ژړیدلے
ژوندن به مِ خاموشه، غلے غلے وو تیر شوے
خزانه ته که نه وے زه به نه وے رژیدلے
که نه وے په سینه کښے مِ اوروُنه ستا د مینے
بخری د وحدت باندے به نه وے بلیدلے
حیران یمه زۂ تاته ستا زړګی او ستا احساس ته
بس کاش زما محبوبه ، چه په برخه مے ته نه وے رسیدلے
ازل نه کائناتو ته زخمی زخمی راغلے
بهیږی را نه وینے په هیڅ نشم جوړیدلے
د حسن نه د عشق نه که خبر نه وے نوبنۂ وے
په درد کښے د هجران به دومره نه وے دردیدلے
دلبر که مِ دلدار وے ، دلبری ئے راسره کړه
سحرؔ په خپله مینه به بس نه وے کړیدلے

## ژونده ته به تیرشې!

اور باندې د مینې به زۀ ټول عمر سوزیږمه
غم کښې د جانان به زۀ همه عمر دردیږمه
څه چه مِ په زړه دی هغه واړه حسرتونه شول
هیڅ نه پوره کیږی ارمانونو کښې خوریږمه
زه خو ځان وتل غواړم د دې نه زۀ وتې نشم
لا مِ وړی په ښکته خدائیګو نور هم زۀ ډوبیږمه
ژونده ته به تیر شې ارمانونو حسرتونو کښې
غم دِ راله راکۀ زۀ به ټول عمر ژړیږمه
دا څنګه چلونه دی او دا څنګه وختونه دی
بخت راسره نه ځی د خپل ځان نه هم یریږمه
نه دې دا ژوندون خدایه! قبول ماته
وا مِ خله دا روح خدایه ترکومې به کړیږمه



## اې خوږه صنمه!

ژوند که مِ ایرې شی او وجود مِ خاورې شی
اې خوږه صنمه! خدائیګو کله به دې پریږدمه
هغه څه چه غواړم ، زۀ به هلته کښې رسیږمه
مړ که شمه خیر دې او زۀ ټول ذرې ذرې شمه
پته مِ زړګی ته ده دا لارې څومره سختې وی
یا رڼړا رڼړا به شی یا به ځان لوګې کړمه
څنګه زلیخې چه یوسفؑ او موندو په مینه کښې
وئیل به ئې د مصریانو د پیغور نه، نه یریږمه
خدائیګو دا قسمت مِ زلیخې غوندې بیدار نه دې
دې خو یوسفؑ او سوند ولې زه به څوکړیږمه
مه وایه جانان ته څه سحرؔ! بس دې مه وایه
هسئی لیونو غوندې بې ځایه زۀ وئیږمه

## "غزل"

نرے نرے م دِرد دے اے غمونو مانه واوړئ
خوږ کړے خپل جانان يم حسرتونو مانه واوړئ
نيمګړے دا دنيا ده ، دا دنيا نه پوره کيږي،
نيمګړے اميدونو، حسرتونو مانه واوړئ
چه ويښ يمه په غم کښنے د جانان نودابه ښنه وی
جوتے خورمه غورزيږم، اے خوبونو مانه واوړئ
ورځ هم توله ستړے وی او شپه ستړے ستومانه
ماپريږدئ چه آرام کړم اے يادونو مانه واوړئ
زما د جانان غم خو ما سحر د پاره بس دے
دنيا زما نه واوړئ ، اے دردونو مانه واوړئ



## آزاد نظم "زما خيالی دلربا"

ے دګلو نه حَسينے!
ړه تر اوسه هم خوږيږی
چه ته تلے ئے دلبرے!
ستا دَ تُورو سترګو تُور وو
چه زما په زړګی داغ شو
بو يوڅاڅکے ترے راڅاڅی
چه راخور زما په روح شی
څه خندا او څه ستا مينه
چه زړګے دِ زما يوړو
څه مو دے اوشوے د هجر
چه بيا رانغلے دلبرے
اله غم دِ رابيسيار کړو
اله خوږ دِ نور هم زيات کړو
وس زه څه او کړم دلبرے
اته اووايه حَسينے
ادستور د مينے نه دے

زه حیران غونډے ښکارم
دا خو ډیر اوږد ژوندن دے
بے له تابه څنګه تیرشی
لږ د خدائے د پاره راشه
لږ خبر د سحرؔ واخله
لا یوازے دے تر اوسه
دا ے ښکاری بے وفائے
یا دِ زړه کښے مینه نشته
زما ژوند دِ یو ارمان کړو
اے زما د زړه دلبرے
ستا یادونه ماسره دی
خو چه کله شم یوازے
نو راوسپړم یادونه
ستا یادونه مِ نور خوږ کړی
ستا نه ډیرے دلبرے
ما دا خپل وجود او روح
ما دا خپله ټوله مینه



ما دا خپل عجیبه ژوند
ستا په مینه سے بخښلے
اے ناپوهے ناخبرے!
خپل یادونه دِ راواخله
زۀ به ناست یم چرته غلے
ستا د ژوند په شړ محل کښے
لږ مِ لاس په لاس کښے راکړه
مالږ اوباسه تیرونه
چه روان شمه زه څمه
د ژوندن په شمه لاره
ګنی هسے په تیروکښے
دا • جود او مینه دواړه
ستا په یادو کښے به ډوب شی
هریو آه زما خما فریاد دے
هر یو ګفت زما یو سوز دے
اے خما ښائسته صنمے!
لږ خو ما طرف ته راشه

انتظار به زۀ دَتا کړم
زۀ به ستا لارو ته ګورم
اے خوږے زما صنمے!
بیا به نه ګورمه چاته
خدائیګو دے ځل له مِ معاف کړه
دا معافی په مینه غواړم
که ته رانه شے دلبرے
زه به مړ شمه له غمه
بیا به سترے په لټون شے
دے جهان کښے به زه نه یم
بس دے ، بس دے
اے دلبرے!
لږ زما طرف ته راشه۔



## د ملګرو نه جُدا شوم

اے ژونده ډیر بے وخته د ملګرو نه جُدا شوم
پریشان یمۀ ، بدبخته د ملګرو نه جُدا شوم
طوفان دَ ورځو شپو دے ماوړی په خپله مخه
ناڅاپه ډیر یک لخته د ملګرو نه جُدا شوم
محفل به ددوی ډک وی ولے موږ به پکښے نه یو
ژړا راځی ، نیک بخته د ملګرو نه جُدا شوم
یادونه به دا ستاسو همیشه زموږ سره وی
افسوس چه بے هجرته د ملګرو نه جُدا شوم
اے زمکے ته ګواه به ئے زما د زړۀ په مینه
زما خواره قسمته د ملګرو نه جُدا شوم
جنازے د مینے لاړے د وختونو ګورستان ته
په ژړا ژړا ناوخته د ملګرو نه جدا شوم
هر لوری ته به مینه وی په سترګو کښے سحر
بیلتون راغے په سخته د ملګرو نه جدا شوم

# بنائیسته ښکلے کشمیر ته!

کشمیر! دومره بدنصیبه ولے
ستا په تقدیر کښنے به وو دا لیکلے
په مخ دِ څومره دی ښائسته خالونه
د وینو رنګ باندے ته چا سُور کړے

که څوک خپل حق غواړی ګناه خو نه ده
دا دومره ظلم مظلومانو باندے چا جوړ کړے
زخمی زخمی ازغی ازغی ،کشمیره ستا وجود دے
د غمه ډک تاریخ هم دلته هندو تا جوړ کړے
هندو! کشمیر ته دومره ولے بدغضبه شولے
کشمیر! دومره بدنصیبه ولے
ستا په تقدیر کښنے به وو دا لیکلے



کشمیر د ګلو باغ وو ترِ نه جوړ دَ مړو ښار شولو
کشمیر ښائسته ګلزار وو عجیبه شان پرِناتار شولو •
ګورونه ئے کنډرے شوے آبادے ګورستان شولے
کشمیرَ ته ښائسته وے، ښائسته خلق درنه ځار شولو
هندو، مسلم سره ته ولے بدسلوکه شولے
کشمیر! دومره بدنصیبه ولے
ستا په تقدیر کښنے به وو دا لیکلے

انجام به دِ خراب وی هندو چار سره جنګړیږے
په پښنو په دِ زخمی کړی تورښامار سره لګیږے
هندو لږ پام کوه دَ حق او باطل جنګ دے
دا زور به دِ لاهو کړی ته دریاب باندے ګډیږے
آخر ته اووایه هندو! دومره بدنیته ولے
کشمیر! دومره بدنصیبه ولے
ستا تقدیر کښنے به وو دا لیکلے

کشمیرَ خپل وجود دِ هم په خپلو وینو رنګ دے
هر ځائے ماتم ماتم دے حق هندو سره په جنګ دے
بازار دے که کوڅه ده که صحرا بنګلے وادی ده
خرشیږی غلامی پکښے هر ځائے د زنځیر شرنګ دے
بُتان مو بنۀ شو، په اسلام ته بدګمانه شولے
کشمیرَ! دومره بدنصیبه ولے
ستا په تقدیر کښے به وو دا لیکلے



## "بنجاری"

دا خواری به زما لیک وه
په ازل کښے چه سبا شی
پنډ راواخلم
لرے لاړشم له وطن نه
په پردو کوڅو کښے ګرځم
پنډ د عطرو د مشکنړو
دا ازل نه
زما برخه
زه تنها تنها روان یم
که زه روغ یم که نا روغه
پنډ په سر زۀ وهم چغے
زړه مِ سترے وجود سترے
راو باسمه زۀ خلق د کورونو
چه څه واخلی
که ګرمی وی که یخنی وی
که باران وی که طوفان

زه روان یمه په مخه
خلق خپلو آستانو کښې
زه د رزق په تلاش
خومره رُسوا شم
ټوله ورځ گرځم
کوڅو کښې
چه ماښام شي چرته ستُون شم
پنډ په سر او وجود ستړے
مسافر یم
چرته غلے زه اودهٔ شم
په صبا صبا مِ عمر ټول تمام شو
اوس سپین گیرے بنجاری یم
که زه نه گرځم کوڅو کښې
نو د لوږے نه به مړ شم
خدا یه دا زما ژوندن دے
دا زما څنګه هستي ده
څله راغلم دے جهان ته



تش د عطرو بنجاری یم
تش په خیټه مِ
ژوند ځار شو
نه د خدائے څه خبر شوم
نه رسولؐ نه
اوس لوټ کړے زمانو یم
لار بوډا شوم
زهٔ ناروغه مړاوے مړاوے
گرځیدے نشم کوڅو کښې
یا به مړ شم زه کوڅو کښې
یا پردی جمات په گوټ کښے
پوهه نشوم په خپل ځان زهٔ
د راتګ مِ څه مقصد وو
زه انسان یمٔ که
د عطرو د مشکنړو بنجاری یم
خدایه مخکښې به څه کیږی
ے دنیا کښے بنجاری ووم

## "غزل"

زۀ د جانان سترګو کښے ورک شوم د ورتلو د پاره
دے څومره ، ښکلے سمندر لاهو کیدو د پاره
زۀ خو دیدار ته، د دلدار ورتلمه
زما ورتلۀ جانان ته نه وو ورکیدو د پاره
ما اوریدلی د هجران صحرا کښے تنده لګی
واخله زما د سترګو نم لږ د اوبو د پاره
م د دے سترے او رسوا دنیا نه زړه سترے دے
زۀ د جانان سترګو ته ګورم خوږیدو د پاره
ما وے چه سترګو د جانان کښے به دمه اوسومم
تلمه ، تلمه ، تلمه پټیدو د پاره

## "غزل"

دلبره لږ خو راشه، تیر یادونه درنه غواړم
د خدائے د پاره راشه ، دیدنونه درنه غواړم
سوالګر یم ستا د مینے ته ما مه رټه دلبره
ستا در ته زه ولاړیم ، احسانونه درنه غواړم
په حُسن کښے یو اُور وی سوزول په دلبران کا
ته شمع، زۀ پتنګ، یم سرۀ اُورونه درنه غواړم
پخپله ته محتاج ئے زما مینه به ته څه کړے
دردونه راله را کړه ارمانونه درنه غواړم
ما قتل کا دلبره! زۀ عادت یم دغمونو
دَ درد دَ پاره راشه زۀ غمونه درنه غواړم
چه هر در ته ولاړ وی سحرؔ هغه سائل نه دے
جولۍ کښے م څه راکه زۀ دَ تا خیرونه غواړم

## ”مینه“

مینه څه ده
تش یو خوب یوه مستی ده
تش یو خیال دے
مینه لیونتوب دے
ناپوهی ده
تش یو غم دے
یو فریاد دے
تش یو درد دے
مینه بنکلے سُر دے
دا په زړه کښې
دننه اوسی
یو خوږ والے دے د سترګو
مینه یو جنجال دے
یو طوفان دے د خیالونو
مینه تش امید دے
یو ارمان دے یو حسرت دے



مینه څه ده
مینه جدائی ده
یو هجران دے
مینه انتظار دے
مینه یو غضب دے
کله قهر د زړګی دے
مینه اوبنکے دی د سترګو
یو ژړا د زړه دَ درد ده
مینه وسوسے دی پریشانی ده
آرزوګان دی
یو فریب دے
مینه خوګیلے دی
کله کله خوشحالی شی
بهار راولی ژوندون کښې
دا یو لوئے د زړهٔ داستان دے
یو نیمګړے شان قیصئ ده
کله کله دا خورَه په کائناتو

خپل اصلي منزل بيا مومي

خپل اصلي

مقام ته رسي



## "غزل"

چه به م زړۀ سره ته څه کړے نازنينے ماته څه پته وه
زما دلبرے د زړۀ سرے ، اے حسينے ! ماته څه پته وه
دا به ياد وی اے زلفينے ما ته څه پته وه
لکه فرهاد به م زړۀ اوچوی اے شرينے ماته څه پته وه
زما دَ ژوند دَ ورځو شپونه دِ مزه ويستلے
چه ته به داسے وے صَنمے ماته. څه پته وه
نه اوس خپل ځان باندے پوهيږم نه جهان نه خبر
ستا په سوداکښے سودائی شومه هير جنے ما ته څه پته وه
زما خوبونه واپس راکه چه قلار اودۀ شم
خوبونه سترګونه سے تلی ، کبرجنے ماته څه پته وه
راله ژړا راځی ، وختونو ، خپل يادونو پسے
زما د زړه بنکلے مشکينے ماته څه پته وه
دومره ظالم او بے وفا شو د سحر په برخه
زۀ څه خبر وم اے کرکجنے ماته څه پته وه

## د ژوند فلسفه

بې غاړو سمندر دې بحروبر کښې طوفانونه
زما د ژوند ملاحه! ته ما کوم ګودر ته بیائې
یریږمه یریږمه، د خړو سیلابونو
ما مه بوځه ژوندنه! ته ما کوم لنګر ته بیائې
زه تلې نشم غرقیږم ، که قدم اخلم ډوبیږم
ما اوباسه له دې نه، ته مِ تور بحر ته بیائې
کاروان د ژوند لوټیږی ، زه په غمو ورته ګورم
ستومانه په ژوندن شوم ، بیا مِ کوم سفر له بیائې
چپو د ژوندانه زه په یو تور بحر لاهو کړم
زما لیونئی مینې بیا مِ کوم یو دَرته بیائې
محلونه دَ ژوندون زما دې تورو اوبو یوړل
ما پریږده کشتی وانه ته ما کوم قَصر ته بیائې
بس شپه دې وی زما د ژوندون ټول عمر دِ شپه وی
تیارهٔ او غم مِ خوښ دی ته ما کوم سحرؔ ته بیائې



## "غزل"

اے مینې مبارک شه شاه خوبان راغلے دے
زما خوارے جونګړے ته نن ګران راغلے دے
دا ورځ به زهٔ په پانړو کښې د سرُو په اوبو لیکم
په دومره زمانو کښې مِ نن، جان راغلے دے
احسان به ئے دَ راتلو زما په غاړه لکه هار
دَ سروګلو امیل دے نن مهمان راغلے دے
ګډیږی نن وختونه ، فضا ګانې په خندا دی
چاپیره خوشحالئ دی نن جانان راغلے دے
سحرؔ! احترام دَ مینې یو خُوبا هم نه کړی
پخپله قدردان ئے قدردان راغلے دے

## "غزل"

اے حُسنه په قلار شه دے اودهٔ زړګی نه واوره
مامه چیړه ساده یم دے ساده زړګی نه واوره
ما هیڅ لیدلی نه دی د ښائست نه وفا ګانے
زما نصیب خو تور دے، دے تیارهٔ زړګی نه واوره
مامه لړزوه حُسنه ، زهٔ ناپوهه ناخبره
ته لوئے دَ مینے راز ئے ، مِ وارهٔ زړګی نه واوره
منمه ستا ښائست دَ تامسکا اوستا خندا
خاموشه ، غلے غلے ، دے خفه زړګی نه واوره
دَ سحرؔ توله دنیا به ستا د یو پوتی ښائست شی
په هیڅ هم خبر نه یم بے هوده زړګی نه واوره



## د معصوم والی مکتب ته!

یو ورځ
هم داسے وه چه زهٔ معصوم ووم
کله چه راشم
ستا ښائسته محل ته
زارهٔ یادونه راله شرنګ راکړی
ستا په تاریخ کښے زما هم حصه ده
خدائیګو چه اوویریږم
راته رایاده شی آلرے دنیا
خپله معصومه دنیا
هر څه بدل بدل وو
زمکے ستا شان بدل وو
خلق هم بل رنګے وو
زما معصومو ښپو چه
زما معصوم وجود چه
کوم ځائے ګذران کړے دے
کوم ځائے کښے وخت تیر کړے

کوم ځائے کښے ناسته کړے
هغے ځائیو له ورشم
ورته خاموشه شمه
له ډیر احساس او درده
له سترګو اوښکے مِ ځی
کوم ځائے چه ناست به زۀ ووم
خپلو ملګرو سره
زما!
وروسترګو چه څه لیدلی
زمانے خدائیګو هغه ټول لرکړی
تاسره ډیر زما یادونه پراته
تاسره ډیر زاړه یادونه پراته
خپل معصوم توب هم
زۀ نن دلته ګورم
په ډیره ګرانه باندے
زۀ هغه نښخے رابرسیره کړمه
اوس ده دنیا بدله



د خپلو پښو هغه واړه ښاپونه
د خپل معصوم ژوندن معصومے ورځے
زۀ ستا په مخ کښے ګورم
خو لیدے کیږی هیڅ نه
ټول زمانے
د ځان سره وړی دی
ما دلته ډیر ډیر سبقونه کړی
ما دلته ډیر د چا یادونه کړی
زما د زړه دا احساس
ډیر پخوانے غوندے دی
نن هغه خلق نشته
وه پرے دا زمکه ښائسته
زمکے!
زمونږ دا ورځے به هم
دا زمانے ډوبے کړی
څه شوه وړه دنیا مِ
په دے کوڅو کښے بوډاګان چه به وو

د دې کوڅو، کورونو
ټوله ورځ،
څوکیداری به ئې کړله
ماته نن ډیرې دروازې
خاموشه بندې ښکاری
خو زمانې هغوی هم
نه دی پریښی
ګورې!
چه کوم ځائې به ذرې ذرې وی
ګیر چاپیره یو څو خړ کورونه
نن ده دنیا بدله
زما معصومو پښو، معصوم وجود مِ
دلته کښې ډیرې ډیرې لوبې کړی
ترمرګه یاد به مِ وی
چرته به هیر مِ نشی
د خپل معصوم ژوندون معصومې ورځې
یو ورځې هم داسې وه چه زه معصوم وم



## "غزل"

زړګیه پرېږده بس دې پرېږده د جانان خبرې
ستا سره نه ښائی د دې فانی جهان خبرې
جانان د بل چا دې زړګیه ګورې ستا خونه دې
اله عبث راکئی د سینې د ارمان خبرې
طوفان به راشی بې وفا که مِ د زړه دلدار شۀ
جاګیر د بل چا دې ته مه کړه مِ د جان خبرې
چا د حسن دومره ناز دومره احسان ولې وړې
ما خود دار زړګیه مه کړه د احسان خبرې
سینې رنځ کښې که مِ روح لاړشی نو هم خیر دې
طبیبه مه راځه ته مه کړه د درمان خبرې
ه دومره عمر دومره خلقو کښې ما څوک اونه موند
سحرؔ! هیرې کړه د یار او د زمان خبرې

## "غزل"

زما د ګلو شوګرے! زما خواله لړ راځه
ډیوه د دیدن راوړه دے صحرا له لړ راځه
رنړا دے د مخ غواړمه، معذور کړمه ډیر هجر
ټول ژوند زما تیارهٔ دے ته بیګاه له لړ راځه
شپه د هجر مِ اوږده شوه خدائیګو کله به صبا شی
ته زما د اوږدے شپے لړے صبا له لړ راځه
خلق ځی شاهی دربا ته خوک جونګړو پله نه ځی
ته په رویٔ زما د مینے ما ګدا له لړ راځه
زما پاکه مینه واخله، قدردانه مینه واخله
هسئ نه چه زه رسوا شم بے نواله لړ راځه
ستا دا مینه دردوی مِ ، ستا فراق سے خوروی
سحرؔ! ژاړی ستا په مینه ، دے ژړا له لړ راځه



## "غزل"

زه څه خبر وم چه به ژوند نه افسانه جوړیږی
ما ته څه پته چه به زړه نه غم خانه جوړیږی
ما وے هوښیار یم د خوبانو همه حُسن زما
دا حقیقت دے چه په حُسن د انسان نه دیوانه جوړیږی
زما زړګیه ستا د مینے احترام هډو چا کړے نه دے
ځکه تنها تنها ګرزیږم نن ځما نه بیګانه جوړیږی
زما زړګے شو بله مینه او دا ښکلے جهان
دومره زه پوه شوم چه مِ زړه نه فرزانه جوړیږی
چرته دا ښکلے زړګے، او چرته دا درد ونه
ماته څه پته چه به زړه میخانه جوړیږی
سحرؔ! واخله ته د ښکلی محبوب ښکلی مینه
تا ته څه پته چه له مینے دُردانه جوړیږی

## "غزل"

زما د مینې احترام چه تا کولے نشو
دا درد و غم زما د روح چه تا وړلے نشو
نو بیا دِ ولے د رباب غمژن تارونه چیړل
پرېږده چه ژاړم، زما غم چه تا ژړلے نه شو
دومره زر هیر شومه دَ تا د بے وفا زړګی نه
ولے! تا یاد زما د ځان سره ساتلے نه شو
نو واخله واخله دا دِ حُسن دا دِ مینه واخله
بیا به ارمان کړے زما غم چه تا زغملے نه شو
تا خو ژوندن ته د سحرؔ ولے تیرے راوستے
زما زړګی ته دِ خپل نُور هډو بخښلے نه شو



## "چه ته معصوم وے چرے داسے نه وے"

ولے! ولے داسے شولے
چه ته معصوم وے
چرے داسے نه وے
تا خو ساده ساده
مزاج لرلو
وے د دنیا نه لرے
ډیر د ګناه نه لرے
وه دِ یو بنګلے دنیا
بنائسته،
دِ زړهٔ لرولو
پاک دِ وجود لرولو
وه ستا معصومه دنیا
نه دے څه بنهٔ پیژندل
نه وے په بدو خبر
اوس دومره اُورلرے ته

خومره حرص لرے ته

تا!

د هر چا سره حسد پیدا کړو

ئے خو انسان

خو در نه سپے جوړ شوے

ستا دی په خله کښے زهر

ستا دی په سترګو پردے

اوس دے په زړهٔ کښے تیاره

'په پاک احساس کښے

تیارهٔ

ته ولے داسے شولے

خومره چه وخت تیریږی

نو ستا قدم خطا شو

روان په ګړو وړو

په خپل وجود باندے

نظر اوکړه

کشتئ دَ ژوند دِ ځی



ګرداب ته ګورے

یو ورځ به ډوبه شی

او هیڅ به نه وی

ته چه معصوم وے چرے داسے نه وے

هلته به چغے نعرے

اووهے حسرت ته ډکے

دا به منجدهار وی ګورے

هلته به خپل شور وی

ته به لا نور ډوبیږے

ځئے به په داسے طرف

شوک به دِ آه نه آوری

نو بیا دا دومره

بغاوت ولے کړے

داسر مستی ولے کړے

ته چه معصوم وے چرے داسے نه وے

ته ولے؟

داسے شولے

# "غزل"

مه ګوره دنیا ته ، ته دنیا ته سترګے پټے کا
خُوږ به دے زړګے کړی بے وفا ته سترګے پټے کا
ته چه څه تلاش کوے دلے هغه موندے نشے
صبر شه زړګیه ، ته خطا ته سترګے پټے کا
خاص چه کله داسے وی له عامو څه ګیلے کوے
وژاړه زړګیه ته ژړا ته سترګے پټے کا
مه غواړه زړګیه ته هر چا نه وفا مه غواړه
هسئی به دے خُوږ کړی محبوبا ته سترګے پټے کا
زۀ که ډیر فریاد اوکړم فریاد باندے به څه اوشی
خپله وفادار ئے، لاپروا ته سترګے پټے کا
ته له نورو خلقو نه جدا ولے احساس لرے
څۀ سحرؔ! فنا نه دے بقا ته سترګے پټے کا



# مه راځه مرګیه!

مه راځه مرګیه! ما له مه راځه!
دا خو ډیر وختی دے امیدونه م نیمګړی دی
ته خاورے کول کوے ، ته فنا کوے انسان
ستا له ډیرے ویرے ما په ځان باندے ژړلی دی
ستا په خوشی کور کښې هر طرف ته بلا ګانے دی
زۀ دَ مور نیازبین یم سختے ما کله لیدلی دی
مه راځه مرګیه، ماله مه راځه!
ما په کتابونو کښې دا ستا قیصے کتلی دی
تا په صحرا ګانو کښې ښارونه خپل آباد کړله
ستا دَ مړو ښار کښې راحتونه چاموندلی دی
څومره خاموشی ده څومره غم دِ ستا په کلی کښې
دومره ډیر دردونه ما سحرؔ کله لیدلی دی

## ځار له تا وطنه

ځار له تا وطنه ستا دَ خاورونه به ځار شم
د سرو ګلو مسکنه ستا دَ ګلو نه به ځار شم
آباد دَ تا په جالو کښې بیدار بلبلان دی
طوفان که په تا راشي ستا دَ سختو نه به ځار شم
ستا دَ باغ بورا ئیم زهٔ به هغه ګوتې اوچیچم
زخمی به شی چه ګل شوکئی، لُولګونه به ځار شم
چرته صحرا ګانې چرته ښکلې ښائسته غرونه دی
ځان به درلوګې کړم ستا د غرونو نه به ځار شم
دا دَ عبادت زمکه دا دَ سجدو زمکه
ستا دَ آزادی د ښکلې ورځو نه به ځار شم
سندهې که پنجابې یمه، افغان که بلوچې یمه
قربان شمه له تا ، ستا دَ جونګړو نه به ځار شم
هندوان که انګریزان دی ، تل په تا باندې حملې کوی
دوی سره به جنګ کړم ستا دَ خاورو نه به ځار شم
امیر دې که غریب دې او که ځوان دې که بوډا دې
پاک زما وطنه ! ستا دَ خلقو نه به ځار شم

## "غزل"

محبوبه خدائې دَ پاره لږ په ما باندې نظر کا
زهٔ مرمه ساه مِ خیژی خپل اشنا باندې نظر کا
زهٔ ستا په مینه پائم ، بې له تانه به زهٔ مړشم
زما بې رحمه یاره لږ په چا باندې نظر کا
صنمه ته حُسین ئې، زما عشق دَ تا نه کم دې
په ماهم ته نظر کا، مِ دنیا باندې نظر کا
دا ستا دِ مینې زور دې چه ما ځان او جهان هیڅ کړه
ستا حُسن لیونې کړم، لیونتیا باندې نظر کا
صنمه! ما په ډیر خوبرویانو کښې خُوبا کړې
ئې بادشاه دَ محبوبانو ، ما ګدا باندې نظر کا
مکوه مکوه اې محبوبه تا مِ مینه آزار کړې
پښیمان به شې په حُسن با وفا باندې نظر کا
ورانیږی مِ دنیا سحرؔ له راشه ، کنه راشه
دَ باد په شانِ تیره شوه، دنیا باندې نظر کا

## "ژوند یو خوب"

ژوندن دے ګورے خوب دے اے انسان لږ راويبښ شه
په ډوب خوب کښې اوده ئے اے نادانه لږ راويبښ شه
دَ خيال په کوڅو سرئے جوړوے ځان له محلونه
کړے وړے دے لاړے ، ئے حيرانه لږ راويبښ شه
دا څه کيږی انسان ! زمانو درسره څه کړه
وجود به دے تول کوږ شی ، په ماګرانه لږ راويبښ شه
هسئ نه دلته کښې دل شے، دَ دنيا په آرزوګانو
خپل اصلی منزل نه لرے سرګردانه لږ راويبښ شه
څه ورځه ورځه منزل نه پاتے نشے نيمه لار کښې
اے سحرؔ پريشانه ، بيا به ته شے پښيمانه لږ راويبښ شه



## کاش که وخته بيرته راغلے

دومره پوهه م نصيب شوه
کاش!
چه تيروختونه بيرته راغلے
په خندا ماته راستون شی
او زهٔ اووائيم جانان ته
چه
ستا حُسن دروغ جن دے
دا زړګے دِ دروغجن دے
هم
دِ مينه دروغجنه
هغه لافے چه به تا کړے
آ ، نازونه
چه به تا کړه
ما ته وخت
اووئيل په ژبه
چه دا تول دروغ دروغ دی

خو
دا ګورے که راستون شی
ډیر وختونه رانه تیر دی
تیر خوبونه رانه هیر دی
چه وختونه
یوځل دروسی
بیا په بیرته نه ستنیږی
چه خوبونه یوځل تیر شی
هیر خوبونه نه یادیږی
کاش
چه بیرته زه اودهٔ شوم
بیا مِ خوب د ځوانئ اولید
دوباره ژوندن مِ راشی
او زهٔ اوښائیم جهان ته
او زهٔ اووائیم جانان ته
چه دے حُسن خپل
سنبهال کړه



د ادِ مینه واپس واخله
ستا دَ
حُسن نه افضله
ستا دَ مینے نه بهتره
دا دَکل جهان نه غوره
چا خودی
ماله راکړے
چا تهذیب ماله راکړے
چا احساس ماله راکړے
پښیمان یم ستا په مینه
پښیمان یم ستا په حُسن
ما ته هر څه را معلوم شو
چه دا ټول عالم فریب دے
که دِ رور دے
که دِ یار دے
دے په تا به مطلب بارکړی
هر څه اولیدل سحرؔ!

تا په سترګو

ډیر وختونه درنه تیر شو
کاش چه تیر وختونه راشی
چه زۀ اووائیم
جهان ته
او زۀ اووائیم جانان
ته
چه هیڅوک دَ چاڅوک نه وی
دا
همه عالم دروغ ویئی
دا دنیا فریب فریب ده



# "غزل"

زړګے زما رژیږی ، بهارونه رالیږه
ستا یاد ذرے ذرے کړم خپل یادونه رالیږه
وادی یمه دَ ګلو بنه ښائسته ښکلے رنګینه
رو رو زۀ مړاوے کیږم یخ بادونه رالیږه
ما وے چه زۀ به ښۀ شم خو بیمار یمه تر اوسه
ناسور مِ په وجود دے مرهمونه رالیږه
منزلونه مِ روک شوی زۀ ئے هغسے لټون کړم
پیچ و تاب کښې لا روان یم ، پیغامونه رالیږه
زۀ خو رحم مینه غواړم ستا ښائست ته مِ نظر دے
ډیر ظالم ئے اے دلبره! ته دردونه رالیږه
زۀ یو داسے خزان والے چه به ټول عمر رژیږم
ارمانی یم ستا دَ حُسن ، ارمانونه رالیږه
منتظر یم آرزومند یم زۀ له ډیرو مودو راسے
کله کله ما سحرؔ ته کلامونه رالیږه

## "غزل"

ډېر موده اوشوه ، خپل جانان راته یادېږی
په زړهٔ مِ راورېږی شاه خوبان راته یادېږی
زړګے ئے راله خُوږ کړو، بیا مِ تلے دے جانان
جانان مِ بے وفا دے هر زمان راته یادېږی
څه ښکلے محبوبا وو څه ئے خوږمره ښکلے حسن
د خپلے سوے سینے ، ښه دوران راته یادېږی
یقین مِ خدائیګو نشی که خیالونو کښے ئے یمه
زما په سینه ګران دے هغه ګران راته یادېږی
زهٔ خو وائیم چه به هیر شی خو هیرېږی رانه چرے
په زړهٔ کښے مِ ډوب پروت دے هر یو آن راته یادېږی
زما په زړهٔ کښے مینه ، دَ جانان زړهٔ کښے ګمان
دَ سحرؔ جانان نادان دے خپل نادان راته یادېږی



## "غزل"

زمانے ماته لږ اووایه ! منزل ته به زهٔ کله رسم
سفر مِ اوږد زهٔ ستومانه دے محل ته به زهٔ کله رسم
هسئی نه لارکښے قافلے دَ ژوندانه مِ لوټ شی
هم په زړګی کښے تلوسے دی خپل بورجل ته به زهٔ کله رسم
زما نه توره زهٔ پریشانه ، رسیدل خو هلته ګرانه غونډے
په توره شپه کښے ، تور وربل ته به زهٔ کله رسم
زمانے بوځه مِ دَ ځان سره دَ یار په لوری
ستړے ستومان ، دیار درشل ته به زهٔ کله رسم
راته معلومه زهٔ سحرؔ به ، نیمه خوانیمګړے پاتے یمه
یمه تنها تنها یوازے، آ محفل ته به زهٔ کله رسم

# چه په هیڅ نه پوهیدلے

کاش چه هیڅ نه ناخبر وے او په هیڅ نه پوهیدلے
وے ناپوهه ! ناخبره، هیڅ مِ نه محسوسولے
تیز احساس دِ راله راکړو هر یو څیز ته دننه ګورم
سرسری چه مِ نظر وو زهٔ پرے هسے تیریدلے
که خاموشه که تنها یم، دا دَ پوهے احساس کار دے
هر یو راز نه زهٔ خبر یم، په هر څیز ئیم پوهیدلے
خلق اوس خوبونه ویني سرابونو ته وردرومی
ما دَ ډیرو زمانونه دَ دے خوب تعبیر ویستلے
هر سړے فریب دے هر سړے دَ مطلب یار دے
ولے! ولے! اے سحرؔ دا راز ولے تا سپړدلے



# اے مدنی رسول ﷺ

یادیږے مِ دلبره ! مدینے ته به درځمه
په زړه مِ راوریږے ستا کوځے ته به درځمه
ستا حُسن نه خبریم ټول عالم کښے حُسن دار ئے
ملګری درسره دی، ستا حجرے ته به درځمه
چه او دِ وینم حُسن، دا آرزو مِ په زړګی دے
پردے به راته لر کړے، ستا کوټے ته به درځمه
دربان ته به دے اووئ اے دلبره چه ما پریږدی
خپل دَر به راته لر کړے دروازے ته به درځمه
بابونه همه ډک دی کتابونو کښے راغلی
په بنکلیو کښے حَسینه تماشے له به درځمه
سحرؔ دَ تا دلبر دے دلبرئ باندے دِ ناز کړی
هسے نه چه مخ دِ پټ کړے یو لحظے له به درځمه

## "یو بوډا"

کله چه ځان ته
زهٔ نظر اوکړم
ډیر
پریشانه شمه
ځان سره سوچ مِ واخلی
چه دَ بنائسته وجود
بنائست مِ څه شو
سترګے
مِ سپینے شولے
لګی بیمارے غوندے
خرمن مِ مړاوے مړاوے
هغه بنائست مِ ورک شو
ویښتو نه رنګ تلے دے
هسئی سپیرهٔ غوندے دے
وجود ګوزن وهلے
لاسونه ، پښے مِ



تول کارهٔ وارهٔ دی
زړهٔ نه مستی وتے ده
ژبه خاموشه شوله
سرکښے مِ
زور نشته
قدم چه اخلم
اخستے نه شمه
جوړے بوډا غوندے شوم
وخت رانه غلا کړے ده
ځما ځوانی ئے وړے
ځوانی به ګورے
کوم ځای کښے وی
چه هیڅ درک ئے نشته
بیائے موندے نه شمه
آخری دا
مرګے به راشی
مابه هم یوسی

قیصه به ختمه م شی
یو تصور او خیال
به پاتے م شی
خاورو کښنے
خاورے به شم
خاورو کښنے
خاورے به شم



# تور ماښنام

اے تک تُور دَ غم ماښنامه تا خو غم ځان سره راوړه
ستا وجود کښنے بس تیرے دی تا تور تم ځان سره راوړۀ
نمر چه پریوزی راروان شے خپل تک تُور څادر راواخلے
کړے راخورئے په دنیا ته، تا تور یَم ځان سره راوړۀ
ستاتیروکښنے څوک خوشحاله څوک شی نورهم لازړۀ ستړے
تا جولئ کښنے دَ فطرت خپل، زیروبم ځان سره راوړۀ
ستا دروند سام دے هر یو څیز کړے غلے غلے
څما ستړگو ته ماښنامه تا سپین نم ځان سره راوړۀ
درپسے وی تُوره شپه تا په تُورو تیرو پټ کړی
سحرَ لرے وی د تا نه غم دِ سم ځان سره راوړۀ

## دَ خپل کلی خاورو ته!

ستا په خاوره ستا په زمکه معصوم توب مِ لوبیدلے
ستا ساده ساده فضا کښې دا وجود مِ لوئیدلے
کله داسې ځائے ته ورشم تیروختونه راته یاد کړی
زۀ معصوم ومه ناپوهه په هر ځائے به ګرزیدلے
ستا په خاوره کښې مِ ښخ دی دَ ژوندن زاړۀ یادونه
یو یو یاد مِ درسره دے کوم چه ما دے پریښودلے
ستا په دے لارو کوڅو کښې ما دی ډیر خلق لیدلی
اوس ته غلے غلے ښکارې، هغه خلق درنه تلے
خلوص نه لری دا خلق ، نه خبر دَ زړۀ له مینې
زۀ چه پام کړمه دنیا ته وئیم چه لړے اوسیدلے
مور و پلار مِ دَ ژوند سیورے زمانو ذرے ذرے کړۀ
باغ دَ ګلو مِ تالا شو ، ژونده لاړے فنا شولے
ځما ژونده! یم په ځان پښیمانه شوے
وئیم چه بیل شمه یوازې ، په زار زار اوژړیدلے
اے زما خوږه مسکنه ، سے دَ مور او پلار وطنه!
ستا دَ خړو کوڅو ځار شم ستا په قدر پوهیدلے



## خدا یه دا ځنګه دنیا ده

خدایه
څو رنګه تخلیق کړے
څوک راځی
نوے دنیا ته
ډیر
وختونه ورسره وی
لا په طمع دَ ژوندن وی
یو دَ شپو ورځو غُورزنګ وی
سمندر غوندے مستی کړی
زوال نه لری په خیال کښې
وی ځوانئ دَ چا حَسینې
دوسره حُسن
چه غورزنګ کړی
وی جذبو کښې
طوفانونه
خو ژوند څه دے

ځان ته پوه کړه
دا مرګی
طرف ته تلل دي
دا ورځ څه ده
دا شپه څه ده
دا مرګی پله مونږ بیائی
مزل لا مې نور زیاتیږی
بل طرف ته هم نظر کا
داسې زړونه
داسې خلق
محفلونه شته
دنیا کښې
یو سکوت هلته
را خور وی
دنیا سمړې سمړې کیږی
دا ځوانۍ هلته کښې نه وی
زړه هم سمړې



وجود سمړې
تش دَ غم سندرې وائی
بس دَ مرګ په انتظار وی
وجودونه رژیدلی
په ارمان هر څه ته ګوری
پریشان،
پښیمانه ښکاری
څوک دی یوشان
دَ چا
بل رنګ
نه پوهیږم خپله ربّه
چه دا ستا
څنګه دنیا ده

## مینه مینه نشته

زهٔ یوازے یم خوشحاله ، چه خلاص یم له جنجاله
پروت راته مزل دے زهٔ روان یمه ، بقا له
چه چاسره ګډیږے ، نو دے ګلے ودے وائی
ما پریږده په قلاره بیا به ، بحث کړو صبا له
عزت به مِ په ځائے وی او دا ژبه هم محفوظه
مذهب مِ خرابیږی وخت مِ وړی خدائیګو فناله
چه ذهن مِ آرام کړی او په زړهٔ کښے مِ سکون وی
پټیږمه له خلقو شوک دے نه راځی مِ خواله
دروغ یا به غیبت کړی یا به ذکر دَ دنیا کړی
دنیا باندے زهٔ څه کړم، کړم سفر ترے نه بیګانه له
مینه مینه نشته، نه خلوص نه احترام شته
خلوص او مینه نشته ځکه نه ورځمه چا له
هسے به پلیت شے، د پلیتو په محفل کښے
ضرر درکوے نشی او نه نفع انسان تاله
چه ژبه وی خاموشه، تنهائی کښے لوئے کمال وی
په چپه خُله یوازے ځهَ سحرؔ خپل الله له



## "غزل"

یمهٔ حیرانه دَ ژوندن ، هغه سبا څه شولو
چه زهٔ ئے مست ومه په حُسن ، محبوبا څه شولو
اول ئے حُسن په خندا زما نه مینه غوښته
اوس راته تلے چرته ورک دے لاپروا څه شولو
زما ځوانی او دَ یار حُسن دواړه یو رنګے دی
زهٔ ئے راویښ کړم رانه لاړو بے وفا څه شولو
خدائیګو تراوسه مِ زخمی زړګے آرام نه مومی
ډیرے مودے اوشوے زمانه خپل خوبا څه شولو
زهٔ هغه نه یم چه په ښکلو دَ دِلبر سر ږدی مدام
مِ دَ ښکلتون زړګی دِلبر او دِلربا څه شولو
زهٔ ئے ګدا کړم ، جهانونه راته هیڅ ښکاری
مِ دَ مهجور زړګی سحرؔ هغه بیناه څه شولو

## تنے تنها یم اے څما محبوبے!

تول ارمانونه امیدونه مِ له زړهٔ وتی دی
تنے تنها یم اے محبوبے! اوس خو راشه کنه
ستا دَ وصال بنکلے ارمان زهٔ په زړګی لرمه
ذرے ذرے دِ کړم صنمے اوس خو راشه کنه
بنکلے خندا ، بنکلے وجود دِ زما نه هیریږی
اے بنجاره راکا مشکنړے اوس خو راشه کنه
ستا نه وصال غواړم محبوبے، دا ګناه خو نه ده
بیا تلوسے به ته زما کړے اوس خو راشته کنه
زهٔ نغمے وائیم ستا د حُسن، ستا دَ مینے ګلے
زما دَ سرو ګلونو ښانګے اوس خو راشه کنه
که زهٔ خبره ومه په مینه مابه ولے کړله
ایرے ایرے دے کړم حَسینے اوس خو راشه کنه



## اے زمونږ زوړ کوره!

زهٔ چه
کله تاته راشم
تیر وختونه راپه یاد شی
خومره بنکلے زمانے وے
ستا په غیږه کښے معصوم وم
دا نازک
زړهٔ مِ یو درد کړی
تیر وختونو ته چه کوز شم
زما
سور و پلار ځوانان وو
ډیر ساده بنکلے
ژوندن وو
خو ژوندن کښے
یو مزه وه
هر طرف ته یو سکون وو
ستا په خړو

کوټکو کښې

مابنامونه ما تیرکړی

یا به زۀ وسه

ناپوهه

یا ژوندن مِ ډیر خوشحاله

مور و پلار چه مِ وه ناسته

کوم ځائے کړے

هغه ځاے له زۀ لږ ورشم

ورته ژاړمه په چغو

وخته!

ډیر ظالم ئے خدائیګو

تامِ بنګلے باغ تالا کړو

دا دِ څه

راسره اوکړۀ

اے زمونږ زوړ کوره!

دروازو ته چه ستا راشم

ماشوم والے راته یادشی



ستا په خړو دروازو کښې

مِ دَ ژوند نخښې لا هم شته

ستا په زمکه

مالیدلی

قدمونه دَ اسلافو

خدائیګو!

چه وی به

چرته خاورے خاورے

زۀ خو ماشوم وم

غم مِ نه پیژندۀ

ستا په جولئ کښې

تمامی عمر خوشحاله ومه

ستا په غیږه کښې پراته دی

دَ ژوندن

خوارۀ وختونه

ن فضا کانے څه سپیرے غوندے دی

دی هر طرف ته خاموشئ خاموشئ

کاش چه وخته بیرته راغلے
زۀ ماشوم وے
مور و پلار مِ هم ځوانان وے
مِ زاړۀ خلق لیدلے
ټول ژوندن وے مینه مینه
خو دا ډیره ګرانه ښکاری
ژونده ډیر لړے ئے تلے
مِ نازک
زړګی نه واوړه
ژوند یو خوب دے چه به تیر شی
لکه خنګه چه تیر شوے
ماله چل نه راځی خدائیګو
زۀ لوټ کړے زمانو یم
یوه ورځ به مِ
دا ژوند هم
یو زوړ کور شی
تش خالی خالی به پروت وی



تش خالی خوشے به پروت وی
اے زمونږ زوړ کوره!
تاکښے د ننه
خومره لویه فلسفه ده
تاکښے د ننه
خومره غم دے خومره سوز دے

# اے ګوره!

اے ګوره در روان يم ګورے ماته به څه نه وئ
يريږمه پريشان يم ګورے ماته به څه نه وئ
ميزبان دِ نشته ګوره ! څکه دا رنګے سلوک کړے
زهٔ ستا نوے مهمان يم ګورے ماته به څه نه وئ
زما سترګے به وی پټے وی تيرے به ګير چاپيره
حيرانه به په ځان يم ګورے ماته به څه نه وئ
منکر نکير دِ پوهه کړه ، بے باکه چه را نشی
زهٔ ګران په خپل جانان يم ګورے ماته به څه نه وئ
خالی لاس به درځمه تش کفن به مِ اغوستے
مسافر ستا دَ مکان يم ګورے ماته به څه نه وئ
غمونو سترے کړے ما سحرؔ غيز کښنبے اودهٔ کړه
اے ګوره! ډير پريشان يم ګورے ماته به څه نه وئ



# "غزل"

که مِ حُسن که مِ مينه دلداری که دلبری ده
دا زما دَ وينے جوش دے دا زما خپله مستی ده
چه زهٔ نه يم خنديدلے حسن نه خاندی دلبره
زهٔ پخپله ډير حَسين يم دا مِ خپله دلداری ده
دا پخپله زهٔ مسکے يم څکه بل راته مسکے شی
نه خندا شته نه مسکا شته دا زما دَ زړهٔ زاری ده
دا زما سترګے خوږے وی څکه يار مِ داسے خوږ شی
دا زما سترګو کښ چل دے دا زما خپله ياری ده
زهٔ پخپله دلربا يم ، زهٔ پخپله يو دلدار يم
يار زما سره که يار دے دا زما خپله هستی ده
سحرؔ خپله وفادار دے څکه يار نه وفا غواړی
که جانان مِ وفادار دے دا زما خپله خواری ده

## "غزل"

جانانه لږ خو راشه دا راتلو په طمع طمع
د سترګو نم مِ اوچ شو، دلیدو په طمع طمع
دا وے چه ته به راشے زما ژوند کښے به ساه راشي
او ته نه راځے محبوبے، زۀ رو رو په طمع طمع
تر اوسه انتظار کړم ، جدائی مِ توله مینه
محبوب مِ بے وفا ، زۀ دَ خوبرو په طمع طمع
محبوبه لږ خو راشه تسلی مِ زړۀ ته ورکړه
خفه یمه پریشان ، دَ خوشحالو په طمع طمع
ناوخته شو دلبر ے جوړ ته نه راځے سحرؔ له
ړاندۀ به مِ چشمان شی دَ کتو په طمع طمع



## "غزل"

پوهه نه شومه په مینه چه ګناه ده که ثواب دے
دا زما دَ زړګی رنځ دے که دا ځان له یو بیل باب دے
ما خو ډیره مینه اوکړه هیڅ پوه نشومه په مینه
زړۀ ګدا ، کله بادشاه شم، دا زما دَ زړګی خواب دے
ما ئے واړولے پاڼړے ، هر یو تکے ښکلے ښکلے
یو معنی مِ هم زده نه کړه عجیبه غوندے کتاب دے
دَ ګل رنګے زړګے وو، کټورے وو دَ شبنمو
مینے مات کنډول تر جوړ کړو خوار زړګے مِ په عذاب دے
هر مجاز کښے یو خپل رنګ وی هر یو تال کښے خپل سرور
حقیقت طرف ته لاړم، جوړے مینه لوئے دریاب دے
یر لویه فلسفه ده دننه مینه کښے سحرؔ
عجیبه قانون دَ مینے عجیبه غوندے حساب دے

# <<< اے میزبان د کائناتو >>>

اے مهمان دَ کائناتو!
اے میزبان دَ کائناتو!
یو اول وو
هیڅوک نه وو
نه دنیا نه کائنات وو
نه دا ورځ وه نه داشپه وه
نه دا نمر وو
نه دا ټول عجب
نظام وو
هر طرف ته تشه خره
هر طرف ته سکوت خور وو
یوه
ستا هستی موجوده
رو رو
تاخُدائی ښکاره کړه
کائناتو هر وجود کښې



عجوبه
شان دِ ښکاره کړو
تا درنه زمکه پیدا کړه
هر وجود کښې ستا خدائی ده

که ګل دے
او که نمر دے
یا آسمان که سمندر دے
هر یو ستورے
لوے نظام دے
رنړا ورځ که توره شپه ده
هر ځائے ستا
وجود خور وور دے
څومره اوږد انتظام ستا
پکښې څومره احترام ستا
هم مهمان ئے
هم میزبان ئے

تا آدم راوستولو
تا هژده هزار قومونه
کائناتو کښې خوارهٔ کړهٔ
زمانې دِ ور پسې کړې
آدم ورک شو زمانو کښې
کائنات
به بیا تس نس کړې
پټ پټ ځی پکښې آدم
دَ اصلی منزل په لوری
دے به ځی بلے دنیا ته
هلته هم خدایه میزبان ئے
ستا خدائی هلته بیسیاره
په جنت په دوزخونو
هلته ستا خدائی یو موج کړی
اے مهمانه ! اے میزبانه
ما آدم ته لږ نظر کړه
ما آدم ته لږ نظر کړه



## "غزل"

راشه دلبرے خدائے دَ پاره ستا نه څهٔ غوارم
زما دَ خُوږ ږړګی یادیږے ستا لیدهٔ غوارم
په ما ګمان مهٔ کړه دلبره زما پاکه مینه
ستا دَ حرم به احترام کا ستا کاته غوارم
کله نه لاکله په مئین زړه مِ تیرے راشی
وائیمه چه درشمه دلبرے زهٔ درتله غوارم
ستا جدائی ستا انتظار او ستا فراق زپلے
ډیر یم حیرانه ، پریشانه خندیده غوارم
زما دَ زړهٔ تسلی نشی په بل چا محبوبا!
ستا دَ خوږے ژبے خبرے اوریده غوارم
سحرَ کوځے ته به درځمه دَ آهونو فریاددونو سره
ستا په درشل باندے دلبرے ژړیده غوارم

## "غزل"

ستا نه لرې اې دلبره ډېره ګرانه زندګي د

پوهه نشومه په هیڅ زۀ ، مِ حیرانه زندګي د

هیڅ قیمت دَ ژوندن نشته ، په ژوندن که څوک نظر ک

په بازار دَ دې دنیا کښې ، څه ارزانه زندګي د

راشه راشه اې دلبره دَ ژوندن زما څه حال دې

هیڅ مزه نشته په ژوند کښې مِ پریشانه زندګي د

په ما رحم کړه دلبره ستا دَ رحم طلبګار ی

سترې سترې یم بد حاله، مِ ستومانه زندګي د

هره ورځ نوې امید نوې آرزو لرم په زړه کښې

خو دنیا کښې تش بس غم وی مِ پښیمانه زندګي د

ستا خیالونه مِ په زړه کښې ، هیرېدې زما نه نش

لږ پریشان ، سحرؔ له راشه سرګردانه زندګي د



## نه دِ رنګ دَ مسلمان او نه شان دَ مسلمان!

جوړ آخره زما نه شوه
دا څنګه مسلمان ئې
دا څه درسره اوشو
او دا څه درسره کیږي
لږ پام کړه مسلمانه
نه دِ رنګ دَ مسلمان
نه دِ شرنګ دَ مسلمان
لباس دَ عیسایانو
سم بربنډ شوې
صفا مخ دَ فرنګیانو
طبیعت دې دَ هندوانو
او مزاج دې دَ جوګیانو
صفا ښکلې ښکاریږې
نه خلوص لرې
نه مینه
احترام درپکښې نشته

څناور درنه جوړ شوے
دَ خوبونو دَ خوراک
د ننه ډډ ئے مسلمانه!
دننه سخائے مسلمانه!
ظاهر بنکلے ځان
جوړ کړے
په بنه شان سره راوُخے
په زمکه باندے ګرزے
خيال دِ پورته له آسمانه
يو سپے
درنه جوړ شوے سم
چيچل کړے
ستا په ژبه کښے ازغی دی
او په زړه کښے اندېښنے
او حسدونه
هر څوک بد درباندے لګی
هر يو کور هر يو محفل ته



لږ په زيرشه
لږ ازميښت په مسلمان کا
دے به څه درسره اوکړی
هندو که مسلمان دے
يا انګريز
او يا څه بل څه
ظاهر انداز مو يو دے
خپل شان دے
چرته ورک کړو
ځان بنه ګنړے مسلمه!
خو بنه نه ئے
خبردار شه
خدائيګو نور هم لا ډوبيږی
چهوت چهات دے لاسوا دے
غريب نورهم لاغريب شو
مالدار نورهم ځی په بره
دا دِ کوم عدل انصاف دے

د مذهب نه لرے لاړے
خپل اصل مقام له راشه
ګنی
ورک به په دنیا شے
دا څه درسره اوشو
لږ راوییش شه مسلمانه!
دا څنګه مسلمان ئے۔



## <<< حسینؓ علیه السلام >>>

یزیده دا دِ څه کړه دَ حضورؐ ښکلے بچے دے
اے زیاده ظلم مه کړه دَ حضورؐ ښکلے نوسے دے
شِمره بد دِ اوکړهٔ هاشمی ښکلے زلمے دے
مهمان دَ عراقیانو دا دَ زور کتورے دے
حَسینو کښے حُسین دَ مدینے دَ کان غمے دے
سردار دَ جنتیانو دا خو څوے دَ فاطمے دے

دا غاړه دَ فُرات ده دَ رسول بچے دِ تږے
صحرا دَ کربلا ده ، دَ علیؓ بچے دے وږے
یزیده! اوبه ورکړه اهل بیت ته لږے لږے
قاسمؓ ، علی اکبرؓ شو دے صحرا کښے سرے سرے
دا ښکلے شرببر دَ مدینے صحرا کښے لوئے دے
لږ پام کوه یزَیده دا بچے دَ آمنےؓ دے

مکوه مکوه اے شِمره سر دِ پریکړو دَ حسینؓ

خپل وجود سره ئے کیږده سر ته وړے دَ نازنین

دا ګناه دَ ده دَ څه وه څه خطا شوے نیازبین

دَ حسینؓ دَ مینے زور ووځه ګناه نه وه حسینؓ

ولے؟ ولے؟ دومره ظلم اے یزیده د چا خوئے

کربلا خو شے صحرا کښے حُسین پروت ذرے ذرے

زینبؓ و حرمؓ ژاړی لوے ماتم دے کربلا کښے

مړ لاش دَ حُسینؓ پروت دے یو لوئے غم دے کربلا کښے

آسمان و زمکه ژاړی یو تور تم دے کربلا کښے

په شونډو د فُرات د وینو نم دے کربلا کښے

اے زیاده ! اے شِمرَا! دا بچے د فاطمے

لوے شوے دے په لاس کښے دَ حضورؐ بنکلے بچے



اے حُسین ! ولے راغلے ته صحرا دَ کربلا ته

دا ښنار دَ بے وفاؤ ولے ځے دے واؤیلا ته

لیوان دی بلاګان دی تو خو ځے دغے صحرا ته

عباسؓ درته وئیلی وو چه مه ځه بے وفا ته

په وینو کښے سُور پروت ئے کربلا ازغے ازغے دے

حُسَینَ! نن په غشو دے بدن سُورے سُورے دے

یزیده! ولے ولے د حسینؓ په مرګ پښیمان شوے

حُسینؓ رښتیا حَسین ووځکه ته ورته حیران شوے

ته مجرم دَ کربلا ئے، اوس که ډیر ځنے ستومان شوے

اے قاتله دَ حسینؓ ! دا په څه دومره ګریان شوے

سردار دَ شهیدانو، بچے دَ عائشے دے

له ذاته ، له نسبه ، دَ حضورؐ دَ حلیمےؓ دے

## ژوند ، (آزاد نظم)

ژوند څه دے؟

انسان څه دے؟

دنیا څه ده!

دَ ژوندن معنی

فنا ده

ژوند نرے نرے یو غم دے

دا دَ شپو ورځو یو تګ دے

تش خیالونه امیدونه

دا دنیا صرف یو

شور دے

هنګامه ده قافله ده

دا روان پخپله لاره

دا بس تلل کړی په یو لوری

دلته دی څومره غمونه

خوشحالی کمه لیدئ شی

دا دنیا دَ هیچا نه ده



دَ ژوند ورځے

مستعار دی

دا دنیا دی تشے لوبے

خو انسان بائلی دا لوبه

دا دَ خلقو تماشا ده

په دے لوبو انسان ستړے

خالی لاس

کورته ور درومی

دَ خوراک او خوب یو سرائے ده

انسان څه دے؟

دا اوبو خاورو یو لوبنے

په یو درز سره ختمیږی

انسان دلته مسافر دے

دَ یو څو ورځو میلمه دے

دنیا هیڅ نه ده لږ پوه شه

دا یو دومره

لوئے مکان به

ناڅاپي غونډې يو درز کړي
شي هر څيز ذرې ذرې به
نه انسان نه به دنيا وي
بيا به!
بل منظر شروع شي
يا به سمه بقا راکړي
يا به
تش اورونه ژوند شي



## ❁ ته به کله راځې ❁

په انتظار م سترګې سرې شوې ته به کله راځې
تيرې قيصئې تولې زړې شوې ته به کله راځې
ستا دَ راتلو په طمع خارمه زهٔ لارې کوڅې
زما جذبې تولې سړې شوې ته به کله راځې
زما ژوندون ستا دَ راتلو په طمعو طمعو تير شو
ستا په فراق په ما تيرې شوې ته به کله راځې
هسئی نه تش وجود له راشې پکښې روح چه نه وی
په ما مابنام شو تورې شپې شوې ته به کله راځې
زما معصوم زړګې رنځور دې بې له تا نه بغير
وختونه تيرشو څه مودې شوې ته به کله راځې
هغه يادونه چه دا تا ماله راکړی ګلې
نخښې دا ستا ذرې ذرې شو ې ته به کله راځې
دَ ژوندون نمر زما پريوزی مازيګر غونډې شو
زما بنائسته سترګې ړندې شوې ته به کله راځې
راشه نن اوګوره کفن کښې زما حال چه څه دې
نن سترې سترګې م لوګې شوې ته به کله راځې
بيا که راځې نو دَ سحر سپيرهٔ مزار ته راځه
قيصئی زما خاورې ايرې شوې ته به کله راځې

## ☆ ولے سر اوچت اوړے ☆

زمکه ته شلوے نشے اسمان ته رسیدے نشے
ولے سر اوچت وړے دے دنیا نه ته وتے نشے
تیټ که سر دِ تیټ کا ، لاندے اوګوره لږ زمکے ته
هسے نه کاواک شے خدائیګو هیڅ هم ته کوے نشے
وګوره بدن ته دے، هر عضو ته اوګوره
هیڅ هم ګورے نه ئے ، ته خپل ځان ته هم کتے نشے
تاکښے حقیقت دے لږ خو اوګوره خپل ځان ته دے
ئے دَ ځناور په شان خپل ځان نه شرمیدے نشے
ځان له دے کوځے دَ خپل خیالونو جوړے کړے دی
ګرزے په خیالونو کښے په هیڅ هم پوهیدے نشے
شاه دے که ګدا دے دَ آدم او ده حوا بچ
ټول خلق دی یوشان ، ته دَ چا هم لوئیدے نشے
زمکے نه تپوس کړه چه دے څه کړه هغه تیر خلق
سر به دِ شی ښکته په هیڅ حال پاتے کیدے نشے
ولے مخ راکاږے ته په څه باندے غرور کو
ئے په لوئے فریب کښے خپل مقام حاصلوے نشے



## ====== زاړه خیزونه ======

نیرے ورځے شپے خوږے وی
همه
تیر عمر حَسین وی
تیر زاړهٔ یادونه ښه وی
تیر زاړهٔ خوبونه ښه وی
ټول زاړهٔ
یاران خواږهٔ وی
پرے زړګے د سړی
خوږ شی
یو افسوس
پسے زړګے کړی
د دردونو جهان جوړ کړی
هم زاړهٔ ځایونه ښه وی
زندګئ پکښے لیدے شی
هم زاړهٔ
خلق خواږه وی

زړونخښنوکښنے

یو سوز وی

او یو درد وی

زمانے وی دوی لیدلے

په تمیز د هر څه پوهه

هر یو څیز خوچه

لږ زوړ شی

نو زړګی ته رانزدے شی

ډیر زیات خوږ شی

ډیر حَسین شی

خو وجود ئے ځی په

ښکته

رو رو دے

په ورکیدو شی

آخر دا چه چرته ورک شی



## مزدور یمه دَ ختمو

دَ ختمو یو مزدور یم ته ځما نه ګیله مه کړه

زما ماشومه ځویه خپل بابا نه ګیله مه کړه

زهٔ پوهیږمه بچیه! ستا دَ زړهٔ په ارمانونو

زهٔ ستا یو غریب پلار یم ماګدا نه ګیله مه کړه

تا له خپله ځویه! خدائیګو هیڅ زهٔ اغستے نشم

دَ علم نه محرومه شوے زهٔ علم درکوے نشم

زهٔ چه تا ته ګورم خوږ زړګی زما خوږیږی

هر څه خو لاپریږده بنه جامے تا له راوړے نشم

مزدو یمه دَ ختمو پرے دارو که زهٔ اوړهٔ راؤړم

ناروغه چه دے مور وی زه حیرانه یم چه څه راؤړم

راتیر په بازارونو شم خالی لاسونه راشمه

زړګے مِ غواړی هر څه چه خپل کور ته زهٔ څه بنه راؤړم

په تورصبا زهٔ اوځمه په تور مابنام زهٔ راشمه
چه څمه ته اودهٔ ئې په اودهٔ ګلفام زهٔ راشمه
خاړې راته لاړې چه رانشمه اودهٔ شې ته
زما غريبه ځويه کور ته تور م[illegible]م زهٔ راشمه

په اودو باندې دِ بنکل کړم، يو شيبه درته زهٔ ګورمه
درد مِ زړګې اوکړی ستا په غم کښې ډير درديږم
ئمه تاته ملامته، زهٔ به تول عمر رژيږمه
ستا ژوند ته چه ګورم خدائيګو هسې زهٔ خوريږمه

توله ورځ شی تيره زهٔ په ختو کښې لوبيږمه
خلق خاندی خوشحاليږی زه په ختو کښې لوغړيږمه
زما معصومه ځويه، خاورې ختې مِ نصيب دی
معلومه راته نه ده ، چه ترکومې به کړيږمه



يريږمه بچيه چړې تا نه خته مار جوړ نشی
زهٔ زخمی زخمی يم چړې تا نه خار زار جوړ نشی
بې غمه تا نه ، نه يم ، ستا غمونه ماسره دی
بيمار ئې کړمه ځويه ، چړې تا نه بيمار جوړ نشی

ځما معصومه ځويه مِ همځولو سره سيال نه کړې
دروغ درته هميش وائيم بچيه ما خوشحال نه کړې
زهٔ يو غريب پلار يم زما ځويه ته غريب ئې
زهٔ غريب خته مار يم ، اې بچيه ماپه حال نه کړې

## ooo بیا دَ ځوانئ وارونه کله راځي ooo

نن خو دے وار دے ښه بیدار شه
بیا دَ ژوندون وارونه کله راځي
وار به دے تیر شي ته هوښیار شه
بیا دا خوازه خوبونه کله راځي
چه قدم ږدے نو مخکښے پام کړه
په خپلو کړو باندے پښیمانه نشے
مینه ته راکړه مِ دلدار شه
ګورے بیا دا وختونه کله راځي
یو ځل به تیر دَ ځوانئ وار شي
ښائسته وختونه به ټول لاړ شي
اوس ته هر چالره بیسیار شه
بیا دَ ځوانئ یادونه کله راځي
هر یوه پاڼره به دِ اورژیږی
که خزانونه دَ وختونو راغلل
نن په دے زمکه نوبهار شه
بیا دا خوازهٔ بادونه کله راځي
پریشان زړګیه ته بیدار شه
بیا دَ ځوانئ وارونه کله راځي



## خاورے

ځان خاورے کړه انسانه!
چه
ګلونه ته زرغون کړے
بهارونه درکښے راشي
پاس چه
پورته په اشمان شے
ژوندن خاورو نه توکیږی
انسان
خاورو نه جوړیږی
ژوندن خاور کښے لوئیږی، ژوند له خاورو پیدا کیږی
خاورے خاورے شه
انسانه!
چه محلونه درنه
جوړ شي
ته ګردونو ته لږ پام کړه
آسمانونو باندے خیژی

زمانو باندې خورېږي

خومره بره بره درومي

څه قیمت لري دا خاورې

هر سړې ځنې خبر دې

هم

سخا لري دا خاوره

هر انسان ترې

فیضان موسي

ده بقا دَ خاورې خومره

ترقیامته به وي

خاورې

ځان چه لوې ګڼړي دَ بل نه

دې به

ورک شي کائنات کښې

خاورې خاورې شه

انسانه!

چه بقا او ژوندن راوړې

یوځل بیا به

خاورې ګېږې



## ☆ دَ پیسو دنیا ☆

چه پیسې درسره نه وي نو بیا کښېنه په قلاره
خبر شه چه تول چل ددې دنیا دې په پیسو کښې
که ډیر ته بنه سړې ئې چه پیسې درسره نه وي
خبرې دې څوک نه آوري لږ خو پام کوه حجرو کښې
په ځان به ته شکي شې چه په ما کښې جوړخه چل دې
څه چل په تاکښې نشته خو تول چل دې په روپو کښې
چه پیسې درسره نه وي خپل به وائي، هیڅ م نه دې
شرمیږې به په تا ، خدائیګو څه اوشو رشتو کښې
هر چاته به ته سپک ئې چه پیسې درسره نه وي
سوندې شي عزتونه ، دَ دولت په خزانو کښې
ډیر مال چه ورسره وي نو ناپوهه به وي پوهه
پوهیږې به په هیڅ نه ، لږ ته ګوره معاشرو کښې
چه زور پیسې دې نه وي نو سلام درته څوک نکړي
سلام هم په روپوکښې دې لږ پام کوه کوڅو کښې
سرپیتوب ئې رانه اوخوړ ، خپل مذهب مو ترې هم ځار کړو
آخره زمانه شوه، دا څه چل اوشو په زړو کښې
دَ انسان منزل پیسه شوه دَ دنیا مقصد پیسه شوه
غریب کوم پلو ته لاړشي هر یو خیال دې په پیسو کښې

## هیریدے څما نه شے

هیریدے څمانه نه شے څما ښنګلے محبوبا
مِ دَ زړهٔ دننه اوسے خوبرویانو کښې خوبا
لاړه ورځ شی ستا په غم او ستا په یاد کښې
م په سترګو کښې خوب نشته تول شپه کړم شوګیرا
زهٔ په لوئے رنځ کښې اخته یم نه ښهٔ کیږم
څما زړهٔ کښې دننه غم دے دَ شها
ماوے خلاص به شم په مینه له دے غمه
لاډوبیږم زهٔ په غم دَ خپل اشنا
ولے نه راځے دلبره ته مِ ژوند له مسیحا
راشه راشه زهٔ به مړشم ستاله غمه دلربا
ما ده خپل زړګی دلبر کړے تا آزار کړم
تا آزار کړمه ظالمه! په هجران او په جفا
تا مِ هوش و عقل وړے تا مِ روح هم آزار کړے
هیریدے دَ سحرّ نشے اے نادانه هوش رُبا



## >>>> لاړ زیړے مازیګرے شو <<<<

ژوند مِ لاړ
مازیګرے شو
ګیر چاپیر رانه غمونه
ډیر خفه خفه
منظر دے
لا په هیڅ نه یمه پوهه
بس دَ شپو ورځو یو
شرنګ دے
یو روانه سلسله وه
ښه ښائسته ښنکلے
ګلزار وو
امیدونه په بهار وو
تش
خوبونه راسره وو
زهٔ مالیار
دَ دے چمن وم

اوس نه باغ شته
نه ئې
ګل شته
دَ ګلونو باغ مِ تش شو
خدائیګو هر
څه مِ تالا شو
لاړ زیړے مازیګرے شو
نه دِ خوند شته
نه دِ رنګ شته
دَ ژوند نمر
په غر غره دے
ځی روان
په ښکته لاره
نمر دَ ژوند مِ لاړ
ډوبیږی
دَ ژوند لویه ورځ شوه تیره
دَ واړه لاسه مِ



خالی دی
مِ جولئ
دَ غمه ډکه
لاړ زیړے مازیګرے شو
زهٔ روان تیرو ته
ځمه
ژونده!
یو ورځ به ماښام شی
ګیر چاپیره به تیرے وی
زما سترګے به وی پټے
دے تیرو کښنے به یوازے
مِ تک تور
محل ته بوځی
نه چراغ نه به رنړاوی
دَ ژوند
توره شپه به راشی
زهٔ به پټ

شمه تیروکښے

بیا موندل به

زما ګران وی

دا به دومره اوږده شپه وی

چه

صبا به ئے ډیر لرے

په کروهونو چرته ښکاری

یا به اورسم صبا ته

یا تیروکښے به زهٔ

لرے چرته لاړم شمه

تمامی

عمر به نه یم

بیا موندل به زما ګران وی



## ***** غزل *****

دردیږمه دلبره ! څه دوا راولیږه

مړ کیږم ساه مِ خیږی څه هوا راولیږه

مخ مه اړوه دلبره ته ځما له فریادونو

ځما خوشحالی ته ئے ، څه خندا راولیږه

ستا عشق په ما تورتم که زندګی شوه رانه ورکه

چراغ دَ مینے بل که ، څه رنړا راولیږه

چه مینه ژوند کښے نه وی دا انسان نه وی حیوان وی

په مینه کښے بقا وی ته بقا راولیږه

سحر دَ غم عادت دے که څه نه وی فکر مه کړه

قاصد له غم ته ورکړه بیا ژړا راولیږه

# امیران

وینے به دے وخښنی شرمخانو سره مه کښنین
تک به درله درکړی ښامارانو سره مه کښنین
سر کښنے ئے هوا وی او په زړونو کښنے ئے خیری وی
شر ترے اوچتیږی مالدارانو سره مه کښنین
ته ئے ځے دربار ته عزتونه ته له دوی غواړی
ټول عزت دَ خدائے دے رئیسانو سره مه کښنین
سات کنډول په لاس خواره جونګړه کښنے ته ښهٔ ښکاری
دروند ځان به دے سپک شی امیرانو سره مه کښنین
عاجزی څه عیب خو نه دے که غریب شولے نوڅه اوش
راشه چه دے پوه کړم، حاکمانو سره مه کښنی
خوسره فلسفه، خوسره حکمت دے امیرانو کښن
خنګ کوه سحرؔ! فرعونانو سره مه کښن



# مرغئی............

وړوکے دے وجود دے او په ونو کښنے دے کور وی
جاسے دے دَ بنړو دی په ښائست کښنے دے یو نُور وی
نه کور نه نغرے لرے نه زمکه جاګیرونه
په خیمه ته مړه ئے په وزروکښنے دے زور وی
همه عمر دے تیر شی په ځنګلو صحرا ګانو کښنے
دَ ډکو کورکے دے وی بچی دے درے څلوروی
یو شپه دے ناره نه وی ، په مړه ګیډه خوبونه
ګودام دَ غلے نه لرے ستا رزق لور په لور وی
صبا کښنے وختی پاسے ته خپل رب لره ثنا کړے
تسبیح و ثنا وائے ستا په ونو کښنے یو شور وی
انسانه ډیر نادان ئے تا د خیټے نه ژوند ځار کړو
دَ رزق په تلاش کښنے خپل رازق هم درنه هیر وی

# "زه مسافر د بل وطن یم"

زهٔ مسافر دَ بل وطن یم
زما دَ ژوند
کلے به بار شی
زهٔ به ځمه
څومره دَ ډیرو
مسافرو کلے تلی
دَ خپل سفر نه
ناخبره
دوی په یو اوږد سفر تلی
دَ دوی مزل
ټول په تیرو کښے
ګورے منزل
ته به
دوی کله رسی
داسے سفر
که زما خوښ او کنه



دا ورځے شپے
زما
سامان بارَوی
دے مسافرو پسے
زهٔ هم روان
خو لا سامان
مِ دَ بار نه دے پوره
زهٔ مسافر یمه
دَ لرے وطن
آخر به ځمه
په
یو اوږد سفر
چرے راستون به نه شم
زهٔ مسافر یمه دَ لرے دطن۔

## دَ هُوشرُبا کلی ته!.......

زړه مِ خفه دے زهٔ نن څمه دَ اشنا کلی ته
ډیر مِ یادیږی ویئم چه لاړشم دَ خوبا کلی ته
څوک خو زړګیه ستا دَ پاکے مینے قدر نه کړی
نو بیا ته ولے ځے دَ داسے دلربا کلی ته
مینے په حُسن باندے څومره فوقیت لرلے
مینه به سپکه کړے ته مه ځه دَ لیلا کلی ته
هسے نه لاړ دے احترام شی دَ جانان مینه کښے
هسے له ورایه ورته ګوره! محبوبا کلی ته
دا خپله مینه خپل زړګے به دَ پښتو نه ځار کړم
خدائیګو چه لاړ به چرے نشم لاپروا کلی ته
جانان په خپل حسن که ناز کړی ، زهٔ په خپله مینه
سحرؔ ! لاړ نه شے دَ داسے هوشربا کلی ته



## حقیقت

دا څهٔ ژوندون دے ، مختصره افسانه غوندے ده
مرګے دَ یار په لور دَ تګ څه بهانه غوندے ده
خپل منزلونه، مقصدونه دلته چاموندلی
ژوند حقیقت کښے بس یو خوب او اندیښنه غوندے ده

## افسوس

اے زړګیه څه کړیږه څه سوزیږه صبریدے ولے نه
څه ژړیږه اوس دردیږه ته له مینے خبریدے ولے نه
څه ارمان کا تش افسوس کا اوس پخپله وفا
دَ بے وفا او لاپروا جانان په زړۀ ته پوهیدے ولے نه
اے زړګیه ته چراغ ئے ته وفا ئے او ته مینه مینه
د یار محفل کښے دَ زړۀ شمعے مړه کیدے ولے نه
لله چه یار سره دلبر سره دیدار دِ کړلو
په مینه مینه دِ کتل ته شرمیدے ولے نه
دا دِ څه حال شو ستا دا حال څه دَ وئیلو نه دے
درسره څه اوشو زړګیه په خپل حال ته ژړیدے ولے نه
اے زړګیه څه کړیږه آزار شوے دے نن روح دے
مینے دَ یار کښے چه زخمی شوے خوږیدے ولے نه
دا دَ جانان ګناه خو نه وه داستا خپل قصور وو
تا چه سحرَ زړۀ ورکو نو ورنه تلے ولے نه



## """" کله کله چه رایاد شے """"

دلرُبا چه راپه یاد شے
م په تن دننه اورشی
هر یو
رګ کښے مِ اور بل وی
ستاپه یادو کښے سوزیږم
هر احساس مِ لمبه کیږی
مِ ذرے ذرے زړګے شی
غم ژړلے شان بنکارم
زۀ
جُدا جُدا له خلقو
دا جادو دے ستا دَ حُسن
سو دائی کړم
ستا یادونو
مِ زړګے له غمه تت شی
له خپل حاله خبر نه یم
دلربا زما دَ مینے

ستا په
یادو وخت تیریږی
خو آخر
به دا ترکومه
زۀ به مړ شمه
له غمه
ستا په یادو کښې دلبرې
ستا په یادو کښې دلبرې



## بده قسمته ځما

زما حساس زړګی نه
خدائیګو
چه هیر به نشی
دا دَ ځوانئ دَ لیونتوب وختونه
مِ په زړګی تر اوسه
سوی داغونه پراته
ټول داستانونه دَ غم
ټول ارمانونه دَ زړۀ
ځما هیریږی چرته
بده قسمته ځما!
بس دے
ما معاف کړه ګورے
مخکښې سفر دَ ژوندن
به ځما پښې ماتے کړی
هرځائے
ازغی ازغی دی

زۀ په خپل ځان ژړیږم
په دومره ویړ جهان کښې
ځما دا خواره
برخه
قسمته څه دې اوکړۀ
ډیرې ګیلې مِ له تا
په ماخو
دور دَ ځوانئ تیر شو
دورونه بیا دَ دنیا کله
راځی..........
وختو ته بیا
دَ جهان کله راځی۔



## ☆ غزل ☆

ځما ځیګرنه وینې ځاځی ، اے دَ جانان غمونو بس دے کنه
زخمی زخمی د زړۀ په سریم ځما دَ یار دردونو بس دے کنه

عمر مِ لاړ مازیګر شو، هیڅ خبر نشومه له ځانه
هجره فرصت راکړه لږ ماته ، ځما دَ یار یادونو بس دے کنه

نه سم جانان اونه دلدار شته هر څوک د خپل مطلب دلدار دے
ستړے شوم ډیرله خپله ځانه اے دَ جانان فکرونو بس دے کنه

ما وے خوبانو کښې خوبا دے بنکلے جانان ماوے ځما دے
د مینې خوبه دروغ جن ئے اے د صبا خوبونو بس دے کنه

ژوند مِ دَ مینې نه قربان که، نه مِ دلدار او نه جانان شته
ذرے ذرے زۀ خپل ارمان کړم اے دَ سحرؔ آهونو بس دے کنه

## "تور محل"

ژوند ښائسته ښکلے یو غر دے
زۀ ولاړ په دغه
غر یم
ټول ژوندن راته ښکاریږی
دَ ژوند نیم مزل مِ کړے
ډیر په ګرانه راغلم دلته
یو شیبه
به زۀ ایسار یم
دَ ژوندن دواړه اړخونه
اوس دَ برے نه زۀ شارم
خو ژوندن
ګړنګ ګړنګ دے
ژوند دے کندے ته ر غاړونه
بلا ګان پکښے اوسیږی
هر قدم کښے
غر قیدل دی



ژوند ختل دی
کوزیدل دی
دَ ژوند نیم مزل مِ پاتے
په رو رو
به زه کوزیږم
ګړنګونو نه ډیر لړے
زمکے تل کښے چرته غلے
زما تور غوندے
محل دے
زۀ به هلته کښے اوسیږم
که م خوښنه
که نا خوښنه
زۀ به ځمه
تور محل ته
هلته لا ژوندن بیګار دے
څه معنیٰ لری ژوندن مِ
څه مطلب لری وجود مِ
ژوند آخر فنا کیدل دی
ژوند یو تور ګړنګ ته تلل دی

## "غزل"

هره لمحه دَ زندګے به صرف یاد پاتے شی
دَ ژوندن اوږد تسلسل به تش یو باد پاتے شی
ژوند خو تش غم دے پښیمانی ده یو فریب دَ ورځو
دا ارمانی دنیا به ورانه ناسراد پاتے شی
ژوند غمونه دی دردونه ، کله کله فریادونه
څوک چه ژوندے وی، آ به څنګه دلته بناد پاتے شی
یوسپیرۀ طوفان به راشی تور خاورو کښے به ډوب شی
دا دنیا دا ارمانونه ، دا هر څه به ئے برباد پاتے شی
سحرؔ دے ژوند کښے ، دے دنیا کښے ، حقیقت لیدلے
چه حقیقت باندے نظر کړی څنګ به بناد پاتے شی



## == غزل ==

زۀ په چاباندے زړۀ خوږ کړم هیڅوک نشته دلربا
هر څوک خپل غم کښے ډوب شوی څوک مِ نشته مسیحا

هیڅ ګیلے له هیچا مه کړه دا دِ برخه دَ ازل ده
ژاړه ژاړه اے زړګیه ! ستا قسمت کښے ده ژړا
مینه نشته ، رحم نشته، دَ هر چا خوندونه تلی
څه بے خونده زندګی ده څه پیکه پیکه دنیا

ولے ولے خطا کیږے، لږ په ځان باندے نظر کړه
که بادشاه دے که ګدا دے واربه تیر شی دَ هر چا

خدائے دِ کړے تاله مینه ستا زړګے کښے ده وفا
مینه مینه کړه سحرؔ له هر چا سره خندا

# 00- غزل -00

خومره زمانے خومره قیصئ دی په دے زمکه کښے
هر څه خاورے کئ دَ غم سیلئ دی په دے زمکه کښے
خومره قافلو دلته کښے ډیرے دمے کړی دی
تلی په بل لوری، پریشانئ دی په دے زمکه کښے
نوم نشان ئے نشته تش یو خوب وو چه تیر شوے دے
هیڅ پته ئے نشته ، ګمنامئ دی په دے زمکه کښے
زړهٔ کښے مِ تیرے شی خوشحالئ زما ویجاړے شی
ځان باندے پښیمانه ، پښیمانئ دی په دے زمکه کښے
وار مِ راروان دے زهٔ به دے میچن کښے دل شمه
غلے به سحرؔ شی، خاموشئ دی په دے زمکه کښے



# ☆ هیڅوک نشته د خبرو ☆

مخ دِ مه راکاږه
سرِیتوب درنه وتلے
لږ چل زده کړه د خبرو
ته کینه او حسد مه کړه
ستا په
سترګو کښے تراخه دی
دے دنیا کښے که ستا زور وی
خو په چاباندے
بَر نه ئے
انسانیت
هم دلته مونږ نه
ډیر خوارهٔ خوارهٔ څه غواړی
هیڅوک پاتے نشو دلته
دَ خوږُو خوږُو خبرو
د هر چا نه بوئیں
روان دے

آخر کوم طرف ته لاړ شو
دا دنیا دے لوے منزل دے
په دنیا منجیلا پروت ئے
مخ
دے گونج گیره دے سپینه
خو
دَ هیڅ نه
خبر نشوے
آخر کوم طرف تا لاړ شو



## توبه توبه

زۀ به دا دومره مینه چا سره کړم
جانانه ته چه لاپروا شوے له ما
دا بے قرار زړگے به خنگ قرار کړم
جانانه! ولے؟ بے وفا شوے له ما
دَ مینے بوئیں چه درکښے نه وو اے زما محبوبا
تا په خوږ و سترگو کتل ولے اشنا شوے له ما
توبه توبه له هر اشنا له اشنائی مِ توبه
غم دے هوښیار کړمه صنمه! چه خُوبا شوے له ما
څه به دنیا وی څه به ئے مینه څه به ئے یار و دلدار
ته مِ دلدار ئے خپله خدایه، دلربا شوے له ما
دَ زړه آرام سحرؔ موندلے ستا په مینه کښے دے
زما دَ زړه قرار په تا دے چه آقا شوے له ما

## ***- - غزل - -***

تنګ یمه دنیا کښې دے دنیا کښې م زړۀ نه لګی
ژاړمه خپل ځان، په دے خندا کښې مِ زړۀ نه لګی
وائیم چه صحرا کښې چرته لرے مِ ژوندن کوو
شور دے ګیر چاپیره ، دے غوغا کښې مِ زړۀ نه لګی
زۀ د یار په مینه ، او حُسن باندے سوے یم
زۀ جوړے رنځور یم واویلا کښې مِ زړۀ نه لګی
خلق دے فانی جهان کښې خاندی خوشحالی کوی
خوبش یم په خپل غم ، هرے هوا سره مِ نه لګی
زۀ سحرؔ فنا به شم، ورک به شم، او هیر به شم
ما سره غمونه دَ بقا دی دے فنا کښې مِ زړۀ نه لګی



## خوبونه مِ پیکه شو

ما وے زما خوبونه به رښتیا شی ، خوبونه مِ پیکه شو
دروغ مِ هر یو خوب شو، امیدونه مِ کچه شو
ما وے چه زۀ به بنۀ شم غم مے لا دَ زړۀ سوا شو
ساقی محفل کښې نشته جام دَ مینے مِ جوته شو
ما وے زۀ به مختار یم ، جهانونه به ځما وی
غلام یمه زۀ دلته، هر یو خیال زما لوچه شو
ما وے دنیا به باغ وی، رنګارنګ به وی ګلونه
نه باغ شته نه ګلونه احساسونه مِ لمبه شو
ماوے خوب دَ سحرؔ دے منزلونه به زۀ مومم
خوبونه مے شو خاورے تول ژوندن مِ لولپه شو

## غم

تا مِ کور
دَ زړګي روان کړو
زهٔ دَ غم د پاره
نه ووم
غمه!
تا مِ ژوند تالا کړو
هره ورځ
په بل بل رنګ کېښې
ته راځې ځما په لوری
مِ دَ ژوند خوندونه یوسې
احساسونه دردوې مِ
تا مِ خلې نه خندا یوړه
زهٔ له غمه غلې ناست یم
زهٔ په څه شمه
خوشحاله
ژوند کېښې



ځائې دَ خندا نشته
ځما برخه کېښې
دردونه
ځما برخه کېښې غمونه
ځما زړهٔ چا دردَ ولې
غمه ته له ما قلار شه
چرته لاړ شه
په بل لوری
ګنې روح به رانه لاړ شي
ځما خپل دردونه
ډیر دي
ځما خپل غمونه ډیر
دي
ماله ځان سره راوړې
ډیر دردونه ډیر غمونه
غمه ولې ژړوې مې
غم مې برخه ازلي ده

## دنیا ده که لیلا ده

ګیلې له هیچا مه کړه، دنیا ټوله بې وفا ده
که رور دې او که یار دې یا که ښکلې دلربا ده
مطلب چه درکښې نه وي یا دنیا درسره نه وي
کړیږه څه کړیږه دا دَ غم ښکلې سودا ده
هر څوک مِ ازمیئلي دي په سترګو' ما کتلي
قلم باندې ئې لیکم، دَ زړګي مِ دا ژړا ده
په سترګو ئې پردې وي د دنیا د مقصدونو
خپل خدائې رسول ترې هیر وي دا دنیا ده که لیلا ده
د ژوند لوئې کتاب کښې لولم زهٔ سحرؔ دَ ژوند رازونه
دا شعر نه دې خلقه ، دَ مطلب ډکه وینا ده



## *** سراب ***

ژوند یو تش سراب دې منزلونه پکښې مه ګوره
ژوند خو شې صحرا ده محلونه پکښې مه ګوره
دې د شګو دشت کښې څومره ډیر حقیقتونه دي
ورکې قافلې دي ، نښانونه پکښې مه ګوره
ژوند یو تور ګړنګ دې دې ګړنګ کښې وي تیاره مدام
ژوند دَ غم یو شپه ده ، ته خوبونه پکښې مه ګوره
هر ساعت دَ ژوند کښې څومره ډیر ډیر فریبونه وي
ژوند پیکه پیکه دې ته رنګونه پکښې مه ګوره
دې اوبو په غاړه خلق ناست وي درمرنجان ګوري
دې سیند کښې سیپۍ دي ته لالونه پکښې مه ګوره
ژوند هغه پړاو دې مسافر چه ورته ځي راځي
ژوند دَ تللو نوم دې راحتونه پکښې مه ګوره
دَل به شې سحرؔ دا وجود به شي ذرې ذرې
ته په بې وفا کښې دَ وفا سُرونه مه ګوره

## ځما دلبر ته!

را خو شه محبوبه! ستا فراق په سترګو روند کړمه
ستا هجر تباه کړم م په سترګو نظر نه لګی
ستا دَ حُسن نقش به همیشه زړهٔ په زړګی لرم
مینه لرم زړهٔ کښښے دَ هیڅ خیز بِر اثر نه لګی
سترګے چه م تلی مِ په زړهٔ کښښے تیاره .وړه ده
تور راته جهان دے مِ دَ زړه هم بصر نه لګی
ښومره خوبرویان دی خو مِ زړهٔ کښښے خپل صنم اوسی
خُوږ ځما دلبر دے په ما بل یو دلبر نه لګی
ستا دے تُورو سترګو سحر ښومره زخمی کړے دے
مړ به شم له درده بیا دے داسے خنجر نه لګی



## """" حقیقت """"

دے بے حسه خلقو ته هیڅ ښوک محتاجه مه کړے
بے ضمیره خلقو ته هیڅوک لیواله مه کړے
رنګ، بنکلے جامے، د سړیتوب نښښخے خو نه دی
اوکړه لږ ازمیښت هسے پرے ځان دیوانه مه کړے

# محبوبا! څمانه لاړې

زړهٔ دِ راله مات کړو

محبوبا!

څما نه لاړې

پټ دِ راله راکړه

دهمه

عمر غمونه

زهٔ دې سودائی کړم

ستا سودا به ماسره وی

رادې کړل داغونه

په زړګی

محبوبې!

لاړې

ستا په انتظار کښېنې به همه عمر مِ تیرشی

ګرانه ده

ستا مینه

محبوبا!



ډیر بې وفائې

ماالله به دې نخښنه

دَ یادونو څه راکړې وه

څومره مودې اوشوې

محبوبا!

زهٔ به ستا هیر یمه

نه مِ ځې له زړهٔ نه

تا زړګې څما نه وړې دې

ډیره مِ یادیږې

محبوبا څما نه لاړې

هجر چه دې زورشی

دلربا!

نو زهٔ به څه کړمه

ستا موندل به ګران وی د ظالمو په دنیا کښې

مړ به شم له غمه

دلربا څما نه لاړې

زړهٔ دې راله مات کړو

# "پاڼې پاڼې"

څه شوې هغه شپې ورځې
څه شو هغه تېر عمر
زۀ
یو ګل غوټۍ وومه
ځان ته سم کتے نشم
مخ نه مِ بنائست شو
سترګو کښې بنکلا نشته
نُور دَ سترګو ورک شولو
هر څه شو بدل بدل
ځان نه زۀ یرېږمه
زړۀ نه مستي تلې ده
هیڅ خوندوَنه نه لري
خوشې دَ غم کور شولو
پښو لا سو کښې تاب نشته
ذهن خو بولې دے
ژبه مِ ګونګې شوله



خلې له خندا نه راځي
هر ارمان افسوس شولو
هر خواهش نیمګړے شو
زۀ ګل
دَ ګلاب وومه
چاپیره بوراګان به وو
اوس خزان راغلې دے
پاڼې پاڼې پروت یمه
خاورو کښې به خاورې شم
دغه!
زۀ انسان ومه
ورځ دَ ژوند تمامه شوه
تکه توره شپه راغله
تکه توره شپه راغله

## یو دوه ټپې

ته به د کوم مجلس ډیوه ئے
زهٔ د هجران په تاریکو کښې مړ به شمه

مینه فراق باندے زیاتیږی
وصال په مینه باندے اُور اولګوینه

# پیژند ګلو

مصنف: ایم طارق سحرؔ

پیدائش: ۱۵ ستمبر کال ۱۹۶۴ء

د پلار نوم: یوسف خان

تعلیم: ایم۔ اے پښتو (پښتو آنرز)
ایم اے اردو
ایم اے اسلامی تعلیمات
بی ایډ

چاپ کتابونه: (۱) د دشت لاروے
(۲) ژوند یو سراب